


# د افغانستان اسلامي امارت

## د عدلي محکمو اداري او حقوقي
## اجراآتو

# اصولنامې

پښتو او فارسی

دطبع نیټه : ( ۱۴۳۵ ) هق کال . د شعبان میاشت

د تمیز عالي ریاست خپرونه

د امتیاز خاوند : ................................ د افغانستان اسلامي امارت

د کتاب نوم : ........................................................ د قضاء اصولنامې

د چاپ کال : ................................................ **۱۴۳۵**هق **۱۳۹۳**هش

د چاپ شمېر : .................................................................... **۲۰۰۰** ټوکه

خپرونکی: ........................................................ د تمیز عالي ریاست

چاپ چارې: .............................. د فرهنګي کمیسیون د تالیف او ترجمې څانګه

دخپرونو لړ: ........................................................................................ **۱۴**

# د عدلي محکمو اداري اصولنامې فهرست



پای

بسم الله الرحمن الرحيم

# مقدمه

الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَكْمَلَ بنَبيِّهِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِينَهُ الْقَويمَ ، وَأَسَّسَ شَرْعَهُ الْمُطَهَّرَ عَلَى أَحْسَنِ الطَّرَائِقِ وَأَحْكَمِ الْقَوَاعِدِ وَشَيَّدَهُ بالتَّقْوَى وَالْعَدْلِ وَجَلْبِ الْمَصَالِحِ وَدَرْءِ الْمَفَاسِدِ ، وَأَيَّدَهُ بالْأَدِلَّةِ الْمُوَضِّحَةِ لِلْحَقِّ وَأَسْبَابِهِ الْمُرْشِدَةِ إلَى إيصَالِ الْحَقِّ لِأَرْبَابِهِ، وَحَمَاهُ بالسِّيَاسَةِالْجَارِيَةِ عَلَى سَنَنِ الْحَقِّ وَصَوَابِهِ . وَاخْتَارَ لِنَشْرِه اَصْحَابَ رَسُوْلِه وَآله الطَّيِّبِيْنَ الطَّاهِرِينَ صَلَوَاتُ الله عَلَيْهِمْ اَجْمَعِيْنَ وَاَصْحَابَ اَصْحَابه هَلُمَّ جَرًّا اِلي يوْمِ الدِّيْنِ وَ كَانَ عِلْمُ الْقَضَاء مِنْ أَجَلِّ الْعُلُومِ قَدْرًا وَأَعَزِّهَا مَكَانًا وَأَشْرَفِهَا ذِكْرًا ؛ لِأَنَّهُ مَقَامٌ عَلِيٌّ وَمَنْصِبٌ نَبويٌّ وَكَانَ الِاعْتِنَاءُ بتَقْرِيرِ أُصُولِهِ وَتَحْرِيرِ فُصُولِهِ مِنْ أَجَلِّ مَا صُرِفَتْ لَهُ الْعِنَايَةُ وَحُمِدَتْ عُقْبَاهُ فِي الْبِدَايَةِ وَالنِّهَايَةِ .ولذالک امر به نبينا وسائرالانبياء صلواة الله وسلامه عليه وعليهم اجمعين : وبعد

د لوي خداي جل جلاله ثنا او ستاينه ده چي د افغانستان اسلامي امارت اړوند ټولي چاري د سپېڅلي شريعت او حنفي فقهي له اصولو سره سم د پياوړو او درنو عالمانو په سر پرستۍ کي تنظيمېږي ، قضائي محاکم يوازيني هغه ارګان دي چي دعدلي چارو دجريان داصلي محور په توګه د هيواد او خلکو د مسائلو اړوند د حق او باطل د جلاوالي ، په امن اوسوکالۍ د باور پيدا کولو او د ولس د حقوقو د خوندي کېدو د ضمانت سرچېنه ده.

دعدلي محکمو د اداري اوحقوقي اجراآتو دواړه اصولنامې له پخوا څخه دافغانستان د ستري محکمې د مسلکي عالمانو په طويل المدة زيار باندي ترتيب اوتنظيم شوې وي چي له (۱۳۳۶) لمريز کال راهيسې دافغانستان دشرعي محکموقاضيان دهغوپه اجرآء اوتعميل مکلف وو.

دافغانستان د اسلامي امارت مشرتابه له نامساعده شرائطواوپېچلوحالاتو سره سره قصد وکړ چې دهيوادپه محکموکي دقضيو دقضاوت اودځېرنوځرنګوالي اواړوندي چاري په اصولي اوشرعي طريقه سره لا ښې تنظيم شي،دهمدې لپاره يي دیادو شويو قضايي اصولنامو دکتنې په موخه د ۱۴۳۳ قمري کال د (۱۰) مياشتي په دوهمه نېټه يو پرتمين علمي اوځيړنيز سيمنار ترتيب کړ، په دې سيمنارکې د تميز عالي مقام علمي کدرونو ، د ولاياتو دمرافعه محاکمو محترمو قاضيانو او همدا راز د هيواد په کچه يو شمېر برجسته علمي شخصيتونو چي دټولو شمېر (۶۰) تنو ته رسېده ګډون وکړ ، چې په نتېجه کې يې د اضطراري حالاتو دغوښتني له کبله په دواړو اصولنامو کې يو لړ اصلاحات رامنځ ته کړل .

د (۱۴۳۴) هق کال د ربیع الثانی دمیاشتي په (۲۵\ ۲۶\۲۷) نېټو د افغانستان د اسلامي امارت رهبري شورى ځینوغړو د تمیز د عالي مقام درنوعلماء کرامو او یو شمېر متخصصو علمي شخصیتونو په ګډ مجلس کې دواړه اصولنامې د مسلسلو تودو بحثونو په ترڅ کې وڅیړلې، همدارنګه د اسلامي امارت مرکزي دارالافتاء هم دغه اصولنامې تر نظر تېرې اوتائید کړې .

له هغه وروسته د اسلامي امارت د مشرتابه له خوا د تمیز عالي مقام د یو نامتوغړي تر سر پرستي لاندې د وتلو جیدو علماء کرامو متخصصواو مسلکي څېړو یوهیئت وټاکل شو ، ترڅو د دواړو اصولنامو د مادو شرعي فقهي جزئیات او ماخذونه ولټوي، او له هرې مادې سره یې په لمن لیک کې ونښلوي ،نوموړي هیئت د ورسپارل شوې درنې دندې د سرته رسولو لپاره د (۱۴۳۴) هجري قمري کال د رجب المرجب د میاشتي له درویشتمې څخه بیا د ذوالقعدة الحرام تر لومړۍ نېټې پورې دواړه اصولنامې دڅه باندې دریومیاشتو په موده کې ماده په ماده په ډېر دقت اوغور سره د حنفي فقهې په معتبرو او معتمدو کتابونو باندې عرض کړې ؛ د الله تعالی جل جلاله په نصرت نوموړی هیئت دیادو مادو د مطلق اکثریت د صریح مراجعواوماخذونوپه را ایستلو بر لاسی شو ، د زیاترو مادو حوالې یې په ګڼ شمېرفقهي کتابونوکې وموندلې خو داختصار له امله یې په یوه یادوه کتابونو بسنه وکړه .

دقضائي چاروااداري مقرراتو په تقیید ،تخصیص اواستثناآتوکې دمجلة الاحکام العدلیة (۱۸۰۰)( ۱۸۰۱) مادې خورا ځلانده او اغیز منه ونډه لرله ، له همدې امله یې په مناسبو موضوعاتوکې کله یوازې اوکله دنورو جزئیاتو په ملتیا پرې اکتفا کړې ده ، دټولو مادو حوالې یې دمذهبي فقهي مستندوکتابونو څخه دهري صفحې په پای کې د هیواد د محترمو قاضیانو اونورو علماء کرامو د اسانتیا اواستفادې لپاره ځای پرځای کړلې، دعدلي محکمو اداري اصولنامه په دوولس عنوانونو ، شپږو فصلونو (۲۷۸) مادو، (۳۰) تبصرو او دریو ضمیمو باندې مشتمله .او دعدلي حقوقي اجراآتو اصولنامه په دوولس عنوانونو (۲۶۰)مادو، (۴۲) تبصرو مشتمله ، ترتیب شوې.

تر یادو مراحلو وروسته یوځل بیا د لاښه غور د پاره ترسره شوی کار د اسلامي امارت د مرکزي دارالافتاء علماء کرامو، د تمیز دعالی مقام درنو غړو، او نورو مشهورو علماؤ ، استاذانو او شیوخوکرامو ته وړاندې شو . هغوی نژدې آته میاشتي کره څېړنه ورباندې وکړه ، وروسته بیا د هیواد دنومیالیو عالمانواو شیوخ کرامو یو ګډ مجلس د ( ۱۴۳۵) هجري قمري کال د رجب المرجب د میاشتي په (۲۶) نېټه را وغوښتل شو او د یوې اونۍ اوږدې

 څېړني او تحقيق وروسته د ټولو مادو ماخذونه ددغه مجلس د رايو په
اتفاق تثبيت شول له هغه وروسته دواړي اصولنامې د افغانستان
اسلامي امارت محترم مقام ته د منظورۍ لپاره وړاندي شوې ،
ترڅو بيا چاپ او دخلکو د عامه استفادي وړ وګرځي ،
له الله تعالى څخه هيله لرو چې دغه اصولنامې
لکه چې تمه يې لرو د اسلامي شريعت
د نفاذ په لاره کې ګټوري وګرځوي
او د عدالت حقيقي اثار پرې
مرتب کړي
والسلام .

نېټه: ١\٨\٥\ ١٤٣٥هق

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ



## د افغانستان اسلامي امارت

## د عدلي محکمو د اداري او حقوقي اجراآتو د اصولنامو په باب

# د مشر تابه فرمان

دافغانستان اسلامي امارت د لوړو اهدافوله جملې څخه مهم او اساسي هدف د اسلام دسپېڅلي دين د اساساتو ساتنه او داسلامي شريعت تنفيذ دی .

د اسلام تاريخ او دبشري ژوند تجربو دا حقيقت ډېرښه ثابت کړی چې سپېڅلی شريعت د يو داسي کامل تهذيب او تمدن بنياددی چې مثل يې د نړۍ په نورونظامونو اواديانوکې نشي موندل کېدای ، د محمدي غراء شريعت اصول د بشر د دنيوي او اخروي ښېګړو دساتني او سعادت د تضمين په بنياد ولاړدي ، په تطبيق کې يې د لوی خدای جل جلاله رضا او د بشر نجات نغښتی دی او له دغه لارې څخه سرغړونه د انسان په بدبختۍ تمامېږي.

څرنګه چې قضاء داسلام د سپېڅلي دين داحکامو دپيروي په حيث د اسلامي نظام يوه لويه ستن بلل کيږي، دافغانستان اسلامي امارت خپلواکه او بې پرې قضاء د انفرادي اواجتماعي حقوقو د تنظيم اوخونديتوب محوربولي، دقضائي عدالت تطبيق د اسلامي نظام ترټولو عالي رکن دی .

د قضايي چارو د تنظيم لپاره دعدلي محکمواداري اصولنامه په دوولس عنوانونو ، شپږو فصلونو (**٢٧٨**) مادو (**٣٠**) تبصرو او دريو ضميمو باندي مشتمله ده ، دغه راز د عدلي حقوقي اجراآتو اصولنامه چي په دوولس عنوانونو (**٢٦٠**)مادو او (**٤٢**) تبصرو مشتمله ده، د هيواد په دواړو رسمي ژبو پښتو اوفارسي ترتيب شوي دي د افغانستان اسلامي امارت د مشرتابه له خوا منظوري دي ، د هيواد ټول عدلي محاکم د توشيح له نېټې څخه د پورتنيو دواړو اصولنامو په اجراء او تعميل مکلف دي .

د افغانستان د اسلامي امارت مشرتابه د ټولو هغه علماءکرامو چي داسلام د سپېڅلي دين د نفاذ لپاره يي په دې کړکېچنوشرايطوکې محنتونه کړي اوهم يي کوي،خصوصاً هغه شيوخ کرام او جيدعلماء چي د مشرتابه د مقام له خوا د دغو اصولنامو د شرعي موازني او تحقيق له پاره ټاکل شوي وه ، د دوئ د نه ستړي کېدونکو هڅو او هاند نه د قدر په نظر ګوري او د الله تعالی له دربار څخه ورته ډېر ډېر اجرونه غواړي ، والسلام .

دافغانستان اسلامی امارت د مشرتابه مقام




# دافغانســـتان اســلامي امارت

## د عدلي محكمو

## اد اری

# اصولنامه

پښتو او فارسی

دطبع نیټه : ( ۱۴۳۵ ) هق کال . د شعبان میاشت

د تمیز عالي ریاست خپرونه

بسم الله الرحمن الرحیم

# د عدلي محکمو د اداري اصولنامې

**عمومي مواد :**

**۱ـ ماده :**

ټولــي دعوی په لومړي ځل په ابتدائيه محکمه کې فيصله کيږي . (۱)

**۲ـ ماده :**

په حقوقي دعووکې چې مدعا به تر شل زره افــغانــيو پــوري وي او پــه جــزائي معاملاتوکــې تريوې مياشتــي حبس نه ( چې دسپکوجرائمو له ډوله بلل کيږي ) زيات نه وي د ابتدائــي محکمــې حکم قطعي دی اونوري دعوی ګاني په داسي حال کــې چــې دواړه خواوي مرافعه ونه غواړي تـر اجرآء لاندي نـيول کـيږي ، پرته د صغير له دعوی ، اعدام ، قصاص ، حدود او عمــري بـند څخه چې د دريـو واړو محکمو له طی کولو نه وروسته تطبيق کيږي . (۲)

**۳ ـ ماده :**

د ابتدائي محکمو احکام په دې صورت چې پخپله دهغې محکمې له خوا او يا =

بسم الله الرحمن الرحیم

# اصولنامۀ اداری محاکم عدلی

**مواد عمومی :**

**مادۀ ـ ۱ :**

تمام دعاوی در مرتبۀ اول در محکمۀ ابتدائیه فیصله میشود . (۱)

**مادۀ ـ ۲ :**

در دعاوی حقوقی که مدعا بِه تا بیست هزار افغاني باشد و درمعاملاَت جزائی تا یک ماه حبس (که از انواع جرائم خفیفه شناخته میشود زیاده نباشد حکم محکمۀ ابتدائیه قطعی است.

وسایر دعاوی درحال عدم مرافعه طلبی طرفین در معرض اجراء گذارده مي شود باستثنای دعاوی صغیر واعدام وقصاص ، حدود ، وحبس دوام که بعد از طی محاکم ثلاثه تطبیق میگردد . (۲)

**مادۀ ـ ۳ :**

احکام محاکم ابتدائیه درصورتیکه از طرف خودهمان محکمه یامماثل آن =

(۱) :هذا مَبْنِيٌّ عَلَى الْمَادَّتِي ( ۱۸۰۰ ــ ۱۸۰۱ ) مجلة الاحکام.

(۲) : الْمَادَّة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام . وشرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحکام جــ (٤) صــ (۶۹۱ــ۶۹۲) .

= دهغې په شان (د اعادې په ډول) د لوړې محکمې له خوا د مرافعې په صورت فسخ یا مات شوې نه وي مرعیُ الاجرآء دي (۱)

**۴ـ ماده :**

د غیرقضائي مجلسونو فیصلې په حقوقي موضوعاتو کې د اعتبار وړ نه دي . (۲) .

**۵ـ ماده :**

عدلیي محکمې هغه دعوی چې دوی ته رسیږي د صلاحیت لرلو په شرط حل او فصل کوي . (۳)

**۶ ـ ماده :**

عدلي محکمې به دهغو دعوو په انفصال اقدام کوي چې په حقوقي او جزائي موضوعاتو کې د دعوو دخاوندانو یا له مربوطو ځانګو څخه دوی ته وړاندي او دهغو د حل او فصل تقاضاء ورځخه شوي وي .(٤)

**۷ ـ ماده :**

که محکمې ته دعوی زیاتي راشي نو دمحکمې دقاضي له خوا ترتیب کیږي هر یوه مدعي او مدعي علیه ته ددعوو د رارسیدو په ترتیب ټکټ ورکول کیږي چې په هغه ټاکلې نېټه د خپلو دعوو =

=(بطور اعاده) از طرف محکمهٔ بالاتر بصورت مرافعه فسخ ویا نقض نشده باشد مرعی الاجراء ست . (۱)

**مادهٔ ـ ۴ :**

فیصله های مجالس غیر قضائی در موضوعات حقوقی قابل اعتبار نیست (۲)

**مادهٔ ـ ۵ :**

محاکم عدلیه دعاوی را که بحضور شان میرسد بشرط وجود صلاحیت حل و فصل مینماید. (۳)

**مادهٔ ـ ۶ :**

محاکم عدلیه به انفصال دعاوی ای اقدام مینمایند که درموضوعات حقوقی وجزائی ازجانب صاحبان دعوی وشعبات مربوطه تقدیم و حل و فصل آنها تقاضا شده باشد. (۴)

**مادهٔ ـ ۷ :**

دعاوی وارده که بکثرت وارد شود از طرف قاضی محکمه تفریق گردیده برای هر یک از مدعي و مدعي علیه به ترتیب ورود تکت داده میشود که بهمان تاریخ متعینه جهة اقامهٔ دعوی =

(۱) : الْمَادَّة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(۲) : الْمَادَّة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(۳) : الْمَادَّتِي (۱۸۰۰ ـ ۱۸۰۱) مجلة الاحکام.

(۴) : الْمَادَّة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام . الْمَادَّة (۱۸۱٦) . مجلة الاحکام . بدائع الصنائع جـ (۷) صـ (۸) . بیروت

= اقامه کولو د پاره محکمې ته حاضر شي . (۱)

**۸ ــ ماده :**

عدلیه محکمې مکلفي دي چې په راغلیو دعوو کې له شرعي مقرراتو سره سم غور وکړي . (۲)

**۹ ــ ماده :**

د ابتدائیې، مرافعې او تمیز دقاضي له خوا به د دواړو خواؤ په حضورکې د ترخیص ټکټ د لمبر او نېټې په قید ورکول کېږي . (۳)

**تبصره** : له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**۱۰ ــ ماده :**

عدلیه لوړي محکمې ترهغه وخته پوري چې ټیټو محکموکوم حکم صادر کړی نه وي د دعوو فیصله نشي کولای .(۴)

**۱۱ ــ ماده :**

جزائي دعوی د واقعې د پیښې په محل او حقوقي د مدعي علیه د استوګنې په محل کې حل اوفصل کېږي ، که مېرمنه ښځه مدعی علیها واقع شي ددې د مېړه د استوګنې ځای معتبر دی همدا راز که صغیر ، مجنون مدعي علیه وي ددوی د واکدارانو او وصیانو د استوګنې ځای اعتبار لري . (۵).

خود ها حاضر محکمه شوند . (۱)

**مادۀ ــ ۸:**

محاکم عدلیه مکلف اند که به دعاوي وارده مطابق مقررات شرعــي رسیدگي نمایند . (۲)

**مادۀ ــ ۹:**

از طرف قاضــی ابــتدائیه ومـرافعه وتــمیز در هر روز بحضور طرفین تکت ترخیص با قید شماره و تاریخ داده خواهد شد . (۳)

**تبصره** : حالات اضطــراري ازحکم ماده فوق مستثنی است .

**مادۀ ــ ۱۰:**

محاکم عدلیه با لاتر تا وقتیکه محاکم پائن تر حکمی را صادر نکرده باشند رسیدگی و فیصله دعاوی را کرده نمیتوانند . (۴)

**مادۀ ــ ۱۱:**

دعاوی جزائی در محل وقوع واقعه ، و دعاوی حقوقی در محل مسکونه مدعی علیه حل و فصل مـیگـردد ، اگــر زن شوهردار مدعی علیها واقع شود محل سکونت شوهرش معتبر است هکذا اگر صغیر یا مجنون مدعی علیه باشد محل سکونت اولیاء و اوصیای شان اعتبار دارد . (۵)

(۱) : الْمَادَّةُ (۱۸۱۰) مجلة الاحکام .ودررالحکام جــ (۴) صــ (۶۱۷) . الاتاسي جــ (٦) صــ (٨٤) .

(۲) : الْمَادَّةُ ( ١٦١٦ ــ ۱۶۱۷ ــ ۱۶۱۸) مجلة الاحکام وشرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٦ ) دررالحکام جــ (۴) صــ (۶۲۶) .

(۳) : الْمَادَّة (۱۸۰۱) . مجلة الاحکام .

(۴) : الْمَادَّة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(۵) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) و (۱۸۰۳) و (١٦١٦) . مجلة الاحکام .

**ضميمه** :

په (**۱۱**) ماده د تبصرو دريو فقرو زياتونه :

**الف** ـ د خارجي تبعي حقوقي او جزائي دعوى په افغاني تبعه باندي كه څه هم واقعه په د باندي خاوره كې وي د مدعي د مراجعې په وخت كې د مدعي عليه په مربوطه محكمه كې فيصله كيدلای شي . (۱)

**ب** : دوه تنه مدعي او مدعي عليه كه د غريب ( مسافر ) په ډول په حقوقي مسئلو كې يوې عدلي محكمې ته نا څاپه حاضريږي محكمه كولای شي چې د دوى دحقوقي دعوى د **حل** او **فصل** دپاره شرعا او اصولا اقدام وكړي . (۲)

**ج** : كه مدعي عليه د مدعي په مربوطه استوګنځى كې ديوه كال په اندازه حاضر وي كه څه هم اصلي استوګنځى هلته د ملكيت په ډول ونلري د مدعي دځاى عدلي محكمه كولای شي چې د مدعي دعوى له مدعي عليه سره د مراجعې په وخت كې واوري او دمقرراتو له مخې يې فيصله كړي . (۳)

**تبصره** : له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنى دي . (۴)

**ضميمه** :

ازدياد سه فقره تبصره ذيل به ماده ( **۱۱** ) :

**الف** : دعاوى حقوقى وجزائى تبعه خارجى بر عليه تبعه افغانى اگرچه وقوع واقعه در خارج باشد ، بمحكمه مربوط مدعى عليه عند المراجعة مدعى فيصله شده ميتواند . (۱)

**ب** : دونفر مدعي ومدعي عليه اگر بطور مسافر (غريب) در مسائل حقوقى به يک محكمه عدلى تصادفاً حاضر ميشود محكمه ميتواند در **حل** و **فصل** دعوى حقوقى شان شرعاً و اصولاً اقدام نمايد . (۲)

**ج** : اگر مدعى عليه در محل مسكونه مربوط مدعي ، باندازه يک سال حضور داشت ، ولو كه اقامت گاه اصلي بطور ملكيت درآنجا نداشته باشد ، محكمه عدلي اقامت مدعي ميتواند دعوى مدعي را عندالمراجعه با مدعي عليه استماع نموده حسب مقررات فيصله نمايد . (۳)

**تبصره** : حالات اضطراري ازحكم ماده فوق مستثنى است . (۴)

---

(**۱**) : شرح المادة (۱۸۰۷) دررالحكام جـ (۴) صـ (۶۱۳) .
(**۲**) : الْمَادَّةُ (۱۸۱۰) دررالحكام جـ (۴) صـ (۶۱۸) .
(**۳**) : شرح المادة (۱۸۰۷) دررالحكام جـ (۴) صـ (۶۱۴) .
(**۴**) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

**۱۲ ـ ماده :**

هيڅ امارتي او رسمي اداره نشي کولای چې دمحکمې صادرشوي حکم ته تغير ورکړي (۱)

**۱۳ ـ ماده :**

متخاصمين د خصومت په وخت کې د دواړو خواؤ په رضا کولای شي چې خپله ذات البيني دعوی تر يوې ټاکلي مودې پوري پريږدي دمتخاصمينو وکيلان ددې مادې له حقوقوڅخه استفاده نشي کولای (۲)

**۱۴ ـ ماده :**

د ابتدايي محکمو په هغو فيصلوکې چې دمدعي يامدعي عليه داقرار يا د حکم مدار وثيقې او شرعــي ابــرآء په اساس مبني وي د مرافعې او تميز غوښتنه يې نه اوريدله کيږي مشبوهه وثيقې ددې مادې له حکم څخه مستثنی دي .(۳)

**ضميمه :**

په (**۱۴**)ماده دتبصرې دوه فقرې زياتونه :

**الف** : هغه حقوقي قضيې چې د ابرآء ، صلح د وثيقواو دغه رازد اقرار د فيصلو د مشبوهيت له حيثه دعدلي محکمو د اداري اصولود (**۱۴**)مادې لمخي مرافعه اوتميز لري لازمه ده چې دمشبوهيت له نيټې څخه په نظرکي ونيولی شي (۴) =

**مادۀ ـ ۱۲:**

هيچ ادارۀ امارتي و رسمی نميتواند که حکم صادرۀ محکمه را تغير دهد .(۱)

**مادۀ ـ ۱۳:**

خــصمين در اثــنای مخاصــمه بــرضای جانبين ميتوانــندکه دعوی ذات البيني خود را تا مدت معــيني متارکه نمايند ، وکلای متخاصميــن از حقوق ايــن ماده استفاده کرده نميتوانند .(۲)

**مادۀ ـ ۱۴:**

درفيصله های محاکم ابتدائيه که باساس اقرار مدعي يا مدعی عليه يا وثيقۀ مدار حکم يا ابرای شرعی مبنی باشد مرافعه طلبی و تميز خواهی اش مسموع نيست ،وثائق مشبوه از حکم اين ماده مستثنی است .(۳)

**ضميمه:**

ازدياد دوفقره تبصره ذيل به ماده (**۱۴**) :

**الف** : قضاياي حقوقي که نظر بمشبوهيت وثائق ابرآء وصلح وهکذافيصله هاي اقرار که ازحيث مشبوهيت نظر به ماده (**۱۴**) اصول اداري مرافعه وتميز دارد لازم است از تاريخ مشبوهيت درنظر گرفته شود نه از تاريخ اصل وثيقه يافيصله .(۴)

(۱) :.الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .تحفة القضات والمفتين صــ (۹٤) الفقه الاسلامي جــ (٦) صــ (۷٥٥).

(۲) : الاشباه والنظائر كتاب الصلح صــ (۲۲۲) وغمزعيون البصائر جــ (۲) صــ (۳۳۰) ماده (۱٥۷۳) .

(۳) : المادة (۱۷۳۶) و (۱۷۳۷) و (۱۷۳۸) و (۱۷۳۹) مجلة الاحكام . المادة (۱۰۰) مجلة الاحكام .

(۴) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .

نه داصلي وثيقې يا پورته فيصلې له مخې .

**ب** : دمرافعې يا تميز محکمه به دغسې وثيقې يا فيصلې يوازې دهغو دمشبوهيت دلائلو له مخې په نظر کې نيسي اوکه مشبوهيت موجود نه وو نوحکم به دهغو په تائيد باندي کوي . (١)

**١٥ ـ ماده** :

دهري دعوی د مراتبو تنظيم دمربوطې محکمې له خوا په پنځلسو ورځو کې حتمي دی ، بې له عذره دهغه د تاخير مسؤليت د هغه چا په ذمه دی چې د هغه د تعطيل سبب ګرځيدلی وي . (٢)

**تبصره** :

له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**١٦ ـ ماده** :

د فيصلې صدور بايد دمراتبو له طی او دهغې له اعلام څخه وروسته په يوه هفته کې وشي . (٣)

**تبصره** :

له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي . (٤)

.............................................

**ب** : محکمه مرافعه يا تميز چنين وثائق يا فيصلها را تنها ازحيث مشبوهيت و دلائل آن در نظر خواهد گرفت و اگر مشبوهيت موجود نبود حکم بتائيد آن مينمايند . (١)

**مادۀ ـ ١٥** :

تنظيم مراتب هر دعوی از طرف محکمه مربوطه در ظرف پانزده روزحتمي است مسئوليت تاخير آن بدون عذر معقول بذمۀ کسي است که سبب تعطيل آن گرديده است . (٢)

**تبصره** :

حالات اضطراری از حکم ماده فوق مستثنی است .

**مادۀ ـ ١٦** :

صدور فيصله بعد از طی مراتب واعلام آن بايد در ظرف يک هفته صورت گيرد . (٣)

**تبصره** :

حالات اضطراري ازحکم ماده فوق مستثنی است . (٤)

---

(١) : المادة (١٧٣٦) و (١٧٣٨) مجلة الاحكام .وشرح الاتاسی جـ (٥) صـ (٣٨٧) .

(٢) : الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) مجلة الاحكام .

(٣) : الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) مجلة الاحكام .

(٤) : الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) مجلة الاحكام .

**١٧ ـ ماده :**
که چیري دفیصلې د ځنډېدو په اثر کوم ضرر پېښ شوی وي متضرر شخص کولای شي چې دخپل ضرر دعوی په هغه چا باندي چې دځنډېدو اوضرر سبب گرځېدلی دی اقامه کړي . (١)

**تبصره** : له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي . (٢)

**١٨ ـ ماده :**
له مدعي یا مدعي علیه یا د تزکیې له شاهدانو څخه دمطالبو استیضاح یوازي د محکمې د قاضیانو په واک کې دی . یعني مفتیان او نور دقضیې کتونکي له مدعي یامدعي علیه یاشاهدانو څخه ایضاحات نشي غوښتلای . (٣)

**١٩ ـ ماده :**
وروسته له هغه چې د موضوع محاکمه تمامه اود طرفینو سوال او ځواب واخیستل شو قاضي دقضیې متخاصمین او مشاهدین له محکمې څخه باسي اودموضوع دحل په شاوخواکې دمحکمې له غړیو سره په مفاهمه کې داخلیږي وروسته له هغه که چیري د محکمې =

**مادۀ ـ ١٧:**
هرگاه در اثر تاخیر فیصله ضرری عاید شده باشد شخص متضرر میتواند که دعوی ضرر خود را بالای شخصیکه سبب تاخیر وضرر گردیده است اقامه نماید . (١)

**تبصره**: حالات اضطراري ازحکم ماده فوق مستثنی است . (٢)

**مادۀ ـ ١٨:**
استیضاح مطالب از مدعي یا مدعي علیه ویا شهود تزکیه تنها از صلاحیت های قضات محاکم شناخته میشود ، یعني مفتي ها وغیره مشاهدین قضیه از مدعي علیه یا مدعي یا شهود چیزي ایضاحات خواسته نمیتواند . (٣)

**مادۀ ـ ١٩ :**
بعد از اختتام مراتب محاکمه موضوع و اخذ سوال وجواب طرفین قاضی متخاصمین ومشاهدین قضیه را از محکمه خارج میکند ودر اطراف حل موضوع با اعضای محکمه داخل مفاهمه میشود متعاقباً هرگاه هیئت محکمه دراصدار حکم مشکلی نمیدید=

(**١**) : شرح المادة ( ١٩) دررالحکام جـ (١) صـ (٣٧) .
(**٢**) : المادة (١٨٠١) مجلة الاحکام .
(**٣**) : المادة (١٨٠١) مجلة الاحکام . والفتاوي الکاملیة صـ (١١٠) .

= هیئت دحکم په صادرولوکې کوم مشکل نه لیده نو فوراً قاضي فتوی اخلي او موضوع حل او فصل کوي . که چیري قضیه دزیات غوراو خبرواترو وړ ولیدله شوه نو دمحکمې هیئت په خصوصي ډول د خبرواتروپه اطاق کې سره ټولیږي اویود بله مفاهمه اونظریې سره اخلي . (۱)

**۲۰ ـ ماده :**

مفتیان اودقضا نور کتونکي حقوقي وي که جزائي سر بیره په هغه چې د پوښتني صلاحیت نلري په خپل منځ کې هم په دغه موضوع کې د ننه او یا دباندي ښکاره خبري اتري نشي سره کولای . (۲)

**۲۱ـ ماده :**

که دمذاکروپه اثر دمحکمې د هیئت د نظرموافقت په لاس رانغی نو بله ورځ به دخبرو اترو په غرض ټاکي البته دورځي دټاکلو خبر به متخاصمینو ته ورکوي او دهغې ورځي تر را رسېدو پوري به دموضوع په شا وخواکې خبرو اترو ته دوام ورکوي . (۳)

**۲۲ ـ ماده :**

که یو له متخاصمینو څخه د محاکمې =

= فوراً قاضی اخذ فتوا نموده به حل وفصل موضوع می پردازد هرگاه قضیه قابل غور مزید ومذاکره دیده شد هیئت محکمه بطورخصوصی در اطاق مذاکره جمع شده با هم تبادله آراء ومفاهمه و اقامه نظریه می نمایند . (۱)

**مادهٔ ـ ۲۰:**

مفتی ها وغیره مشاهدین قضا حقوقی باشد یا جزائی علاوه از آنکه صلاحیت استفسار ندارند در بین خود هم مذاکرهٔ علنی داخل موضوع ویا خارج موضوع کرده نمیتوانند . (۲)

**مادهٔ ـ ۲۱:**

هرگاه در اثر مذاکره موافقت نظر هیئت محکمه بدست نیامد ، روز دیگریرا بغرض مذاکره تعین می نماید البته به متخاصمین تعیین روز ابلاغ مینمایند وتار سیدن روز مذکور مذاکره را در اطراف موضوع دوام میدهند . (۳)

**مادهٔ ۲۲:**

هرگاه یکی از خصمین در اثنای =

(۱) : شرح المادة (۱۸۱٥) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٢٤) .
(۲) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٥) دررالحكام جـ (٤) صـ (٥٩٤) و (٦٢٤ ) و (٥٨٧) .
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .

= په ترڅ کې د محاکمې له خبرو اترو نه ووزي اودموضوع خبروته يې التفات نه کاوه او يايي د محکمې پوښتنو ته ځواب نه ورکاوه، دوه درې کرته له هغه سره خبرې کوي او پوهـ کوي به يې که اعتنا ئي ونه کړه نو متمرد بلل کيږي او دممتنع مادې احکام به ورباندي اجراء کيږي .(۱)

**۲۳ـ ماده :**

دمحکمې له غړيو څخه هيڅ يو تن دمحکمې په ترڅ کې له محاکمې يوله طرفينو سره دداسي خبرو اترو او د رايه اوفکر ښکاره کولوچې په دعوی پوري اړه لري او دهغو اسبابو، دلائلو، د ايراد چې ددعووتائيد ياجرحه، يا ددعوی دفع ورڅخه وفهمول شي حق نلري، البته وروسته د طرفينو له توضيحاتو او دمحکمې دمتعلقي موضوع له تمامېدو دمحکمې غړئ دقاضي په اجازه کولای شي چې يو له طرفينو او يا دواړو څخه پوښتنه او استيضاح وکړي. (۲)

**۲۴ ـ ماده :**

محکمه نشي کولای چې له لسو ورځو نه زيات دخبرو اترو وخت اوږد کړي (۳)

=محاکمه ازمذاکرات محاکمه خارج شده بمذاکرات موضوع التفات نميکرد ويا سوالات محکمه را جواب نميداد دو ، سه دفعه اورا تذکر وتنبيه نموده اگر اعتنا نکرد متمرد شمرده مي شود احکام ماده ممتنع براو اجرآء می شود . (۱)

**مادۀ ـ ۲۳ :**

يکی از اعضای محکمه در اثنای محکمه حق تکلم يا يکی از طرفين اظهار رای وفکری که متعلق دعوی باشد و ايراد اسباب و دلائلي که تائيد و يا جرح دعوی يا دفع دعوی ازآن فهميده شود ندارد ، البته بعد از توضيحات طرفين واتمام موضوع متعلق به محاکمه اعضای محکمه باذن قاضی ميتواند يکی از طرفين و يا از هردو، سوال واستيضاح نمايد . (۲)

**مادۀ ـ ۲۴ :**

محکمه نميتواند که اضافه از ده روز وقت مذاکره را امتداد دهد . (۳)

(۱) : المادة (۱۸۳٤) مجلة الاحكام .شرح المادة (۱۸۱۷) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٤٠) .

(۲):شرح المادة (۱۷۹۸) دررالحكام جـ (٤) صـ (٥٩٤) المادة (۱۸۰٦) صـ (٦١٢) . الاتاسي جـ (٦) صـ (٤٦ ـــ ٤٧)

(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .

**تبصره** :له پورتنی مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**۲۵ ـ ماده** :

دخبرو اترو اوغونډو په وخت کې د محکمې دټول هیئت حاضریدل ضروري دي، بې له اصولـي عذرڅخـه دمحکمې دیوه غړي په غیاب کې حکم نشي کیدای . (۱)

**تبصره** : له پورتنی مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**۲۶ـ ماده** :

د خولې خبري اتري چې د قضیې د حل اوفصل رکـن ونه بللـي شي په فیصله کې نشي داخلیدای بلکې لیکلي کیږي اوپه نورو مربوطوپاڼوکې په دوسیه کې ساتلي کیږي . (۲)

**۲۷ـ ماده** :

وروسته له هغه چې قضیه پای ته ورسیده نو قاضـي یا دمحکمـې یو غړئ دهغـې قضیې حکم لیکي اودطرفینودمدعیاتو اومدافعاتو د رد او قبول اسباب توضیح کوي شرعي مسائل ،موادچې حکم اتکاء ورباندي لري واضح کوي اودمحکمې هیئت به یې په ګډه لاسلیک اومهر وربانديلګوي (۳)

**تبصره**:حالات اضطراری از حکم ماده فوق مستثنی است .

**مادۀ ۲۵**:

حضور تـمام هـیئت مـحکمه در وقـت مذاکرات وجلسات ضروری است در غیاب یکی از اعضای محکمه بدون عذر اصولی حکم شده نمیتواند . (۱)

**تبصره** : حالات اضطراری ازحکم ماده فوق مستثنی است .

**مادۀ ۲۶** :

مـذاکرات شفاهی که رکن حل وفصل قـضیه شناخته نـمیشود داخل فـیصله شده نمیتواند بلکه در قید تحریر آورده در جـمله دیگـر اوراق مربوطه ضـبط دوسیه میشود . (۲)

**مادۀ ـ ۲۷**:

بعد از انکه قضیه خاتمه یافت قاضی یا یکـــی از اعضاء محکمه آنــرا تحــریر واسباب رد ، وقبول مدعیات ومدافعات طرفیـــن راتـوضیحات میدهد ومواد ومسائل اتکاء دارد واضح میسازد وهیئت محکمـــه جمعـا در آن امضاء ومهــر می نمایند . (۳)

(۱) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) و(۱۸۰۲) مجلة الاحکام . الاتاسي جـ (٦) صـ (٦٦) . معين القضات والمفتيين ماده (٣٦٨) صـ (٦٥) . جواهرالروايات مطلب في الشيئ المفوض الي اثنين صـ (٤١) .

(۲) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۲۷ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٦٣) . وشرح الْمَادَّةُ (۱۸۲۷) الاتاسي جـ (٦) صـ (۱۳۰)

(۳) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) من مجلة الاحکام . و شرح المادة (١٨١٤) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٢١) .

**۲۸ـ ماده** :

محکمه نشي کولای چې تصویب شوی حکم پخوا دلاسلیک څخه متخاصمینو یا د دوی یوې خواتــه ورکــړي اوویې پوهوي (۱)

**۲۹ـ ماده** : د تمیــز د محکمــې څخــه صادره احکام په مطلقه اکثریت ســره کیږي . (۲)

**تبصره** :

که د تمیز د محکمې د هیئت غړیو په خپل منځ کې مساویانه اختلاف درلود ، هري خوا سره چې دمحکمې د رئیس او یا دهغه نائب همفکر ملګرئ شو هغه خوا غلبه مومي . (۳)

**۳۰ ـ ماده** :

که قضیه دقسم په صورت فیصله شوې وي باید په فیصله کې دقسم ډول واضح ذکر شي چې آیا دبتات قسم دی یا دعلم قسم دی او آیا دســـبب قـــسم دی ، یا دحاصل قسم دی . (۴)

**مادۀ ۲۸**:

محکمه نمیتواند که حکم مصوبه را قبل از امضاء به متخاصمین ویا به یک جانب شان بدهد وتفهیم نماید . (۱)

**ماده ـ ۲۹**:

احکام صادرۀ محکمۀ تمیز باکثریت مطلقه صورت میگیرد . (۲)

**تبصره**:

هرگاه اعضای هئیت محکمه تمیز در بین خود مساویانه اختــلاف داشتنـــد بـــه هرجانبی که رئـیس محکمه یا نائب او همفکر گردید جنبه مذکور غلبه می یابد . (۳)

**مادۀ ۳۰**:

هرگاه قــضیه بـصورت قسم فیصله شده باشد در فیصله نوع قسم واضح ذکر باید شد که ایا قسم بتات است یا قـــسم عـلم و یا قـسم سـبب ویا قـسم حاصل . (۴)

(۱) : شرح المادة (۱۷۹۹) جـ (٤) صـ (٥۹٥) . شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٥ ) دررالحكام . جـ (٤) صـ (٦٢٤) .

(۲) : جامع الفصولين جـ (۱) صـ (۱۲) و معين الحكام صـ (۳۰) ردالمحتار مطلب رسم المفتي .

(۳) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۴) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۲۷ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٦٣) والاتاسي جـ (٦) صـ (۱۳۰) . جامع الفصولين , الفصل الخامس عشر في التحليف , جـ (۱) صـ (۱۹٤) .

**۳۱ ـ ماده** :
که محکمې د قسم نوع او ډول ونه ټاکه یا قسم د مدعي په ادعا او مدعي علیه په مدافعه موافقت نه درلود نو دا حکم دلوړې محکمې له خوا د ماتیدو وړدی . (۱)

**۳۲ ـ ماده** :
د فیصلې تنظیم او صدور باید په لاندې ډول وي :

**الف** : د استدعا او دهغو پاڼو لنډیز چې محکمې ته وړاندې شوې دي همدا راز محکمه دهغو د لنډیز استیناف او تمیز د فسخ یا نقض په صورت حکم دائره وي .

**ب** : ـ دمحکمې فیصله ( پرته له دې چې جریانات په فیصله کې په لنډ ډول سره ذکر کیږي ) د صورت دعوی سره مطابق وي دکلمو وړاندې والی وروسته والی باک نلري ، او د دواړو خواؤ دلائل په لنډ ډول اخیستل کیږي . (۲)

**ج** :دمحکمې عنوان او دفیصلې ډول. (۳)

**د** :ـ د متخاصمینو یا د دوی د وکیلانو تعرفه دجانبینو د شهرت او کسب سره (۴)

**مادهٔ ۳۱**:
هرگاه محکمه نوع وطور قسم را تعیین ننمود ویا قسم با دعای مدعي ومدافعهٔ مدعي علیه موافقت نداشت حکم مذکور از طرف محکمه بالا ترقابل نقض است . (۱)

**مادهٔ ۳۲** :
تنظیم و صدور فیصله باید برحسب آتی باشد :

**الف**: خلاصهء استدعا و اوراقی که به محکمه تقدیم شده است و هکذا محکمه استیناف و تمیز خلاصهٔ آنرا در صورت فسخ یا نقض حکم دائر میکنند .

**ب** : فیصلهء محکمه (باستثنای اینکه جریانات در فیصله بطور اختصار ذکر میشود ) با صورت دعوی مطابق می باشد تقدیم و تاخیر درکلمات باکی ندارد ودلائل جانبین بطور خلاصه گرفته میشود . (۲)

**ج** : عنوان محکمه ونوع فیصله . (۳)

**د**: تعرفه متخاصمین یا وکلای شان با شهرت و پیشه جانبین. (۴)

(۱) : خلاصة الفتاوى جـ (٤) صـ (٤١) . معين القضات والمفتيين المادة (٣٠٠) صـ (٥٥) .

(۲) : شرح المادة (١٨١٦) جـ (٦) صـ (٩٣) للاتاسي . شرح الْمَادَّةُ (١٨٢٧) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٦٢) .

(۳) : شرح المادة (١٨٢٧) جـ (٤) صـ (٦٦٣)

(۴) : الفتاوى الهندية جـ (٣) صـ (٣٢٤) .شرح المادة (١٨١٧) جـ (٤) صـ (٦٢٩) .

**هـ** :ـ د انكار يا داقرار صورت ، د قسم يا د شاهدانو د شهادت كيفيت .(۱)

**و** : په فيصله كې بايد داسي ونه ليكل شي چې شاهدانوله دعوی سره سمه شاهدي اداكړې ده بلكي كټمټ دهغوالفاظ دي ذكر شي .(۲)

**ز** : په فيصله كې حكم بايدصريح وي.(۳)

**ح** : ـ حكم دي په عللواواسبابو احتوى ولري . (۴)

**ط** : ـ كه محكمې د شاهدانو شهادت رد كړ او له دعوى نه يې مخالف وګانه نو دمخالفت او ترديد وجه دي توضيح كړي ، همدا راز كه دمعترض داعتراض كولو دعوى دمودې د تيريدو له كبله ترديد كيدله، نو دمودې ابتداء اوانتهاء ټاكل ذكر كيږي . (۵)

**ی** : ـ كه دمرافعې محكمې د ابتدائې دفيصلې تاييد په نظركې درلود ، او د معترض اعتراضونه يې ترديدول ، نو لازم دی چې دمعترض اعتراض موضوع په موضوع ترديد كړي .(۶)

**هـ** : صورت انكار يا اقرار وكيفيت قسم وشهادت شهود .(۱)

**و** :درفيصله نبايد چنين نوشته شود كه شهود طبق دعوی شهادت داده اند ، بلكه عينًا الفاظ آنرا ذكر نمايد . (۲)

**ز** : درفيصله حكم بايدصريح باشد .(۳)

**ح** : بر علل و اسباب حكم احتوا داشته باشد . (۴)

**ط** : اگر محكمه شهادت شهود را رد نموده ومخالف دعوی دانست وجه مخالفت وترديد را توضيح ميدهد ، وهكذااگراستدعای اعتراض معترض از سبب انقضای ميعاد ترديد می شد تعين ابتدای مدت وانتهای آن ذكر ميگردد . (۵)

**ی**: اگر محكمه مرافعه تائيد فيصله ابتدائيه را درنظر داشت اعتراضات معترض را ترديد می نمود لازم است اعتراضات معترض را موضوع بموضوع ترديد نمايد . (۶)

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۱۷ ) و( ۱۸۱۸ ) و( ۱۸۱۹ ) مجلة الاحكام . الفتاوى الهندية جـ (۳) صـ (۳۲٤) .
(۲) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۲۷ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٦٣) .
(۳) :شرح الْمَادَّةُ (۱۸۲۷) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٦٣) .
(۴) : شرح الْمَادَّةُ (۱۸۲۷) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٦٢) .
(۵) : شرح المادة (۱۸۳۸) جـ (٤) صـ (٦۹۰) و صـ (٦۹۱) .
(٦) : مبني علي الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .

**ک** : ـ هغه فیصله چې په شرعي مسائلو او موادو اتکاء ولري لازم دی چې هغه شرعي مسائل او مواد په واضح ډول ولیکل شي . (۱)

**ل** : ـ په فیصله کې باید واضح ولیکل شي چې د طرفینو په حضورکې حکم شوی دی یا څرنګه . (۲)

**ک** : فیصله ای که بمواد ومسائل شرعی اتکاء داشته باشد لازم است که مواد ومسائل شرعی آن واضحًا ذکر گردد . (۱)

**ل**: درفیصله باید واضح تحریرگردد که بحضور طرفین حکم شده است یا چطور . (۲)

## لومړی باب
## د دعوی په مبادیو کې

## لومړی فصل
## په استدعاء کې

## باب اول
## در مبادی دعوی

## فصل اول
## در استدعاء

**۳۳ـ ماده** :

دعریضو سره ددعوی دمحتویاتو توافق اولاندنیو مراتبو مراعات حتمي دی. (۳)

**الف** :ـ دعریضې نېټه دورځې،میاشتې ،کال په تفصیل .

**ب** :ـ دمدعي اومدعي علیه نوم شهرت اوکسب ، تابعیت او د دوی د استوګنې اصلي ځای او اقامت محل .

**مادۀ ۳۳** :

توافق محتویات دعوی با عرائض ومراعات مراتب آتی حتمی است : (۳)

**الف** : تاریخ عریضه به تفصیل ، روز ، ماه ، سال .

**ب** : اسم مدعی ومدعی علیه شهرت وپیشه، تابعیت ، محل اقامت ومسکن اصلی شان .

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۲۷ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦٦۲) .

(۲) : الفتاوای الهندیة الباب السابع جـ (٦) صـ (۳۳۷) جامع الفصولین جـ (۱) صـ (۸٦)

(۳) : الفتاوای الهندیة الباب السابع جـ (۳) صـ (۳۲٤ــــ ۳۲۵) . دررالحکام جـ (٤) صـ (٦۲۵) .

**جـ** : ـ د دعـوی د مـقصد لـنډيز سره دپېښې دوقوع له نیټې . (۱) .
**د** : ـ دعارض لخوا دعریضې لاسلیک یا مهرکول اودتذکرې دلمبرښکاره کول . (۲)
**هـ** : ـ په داسـي حـال کې چې عارض وکیل یا وصي وي نودوکالت یا وصایت سند ښکاره کول اوپه عریضه کـې دهغو لمبر داخلول او دهغې محکمې توضیح کول چې دا سندپه هغې کې ترتیب شوی وي . (۳)

**۳۴ ـ ماده :**
حقوقي عریضه په مستقیم ډول ابتدائیې محکمې ته وړاندي کیدای شي . (٤)

**۳۵ ـ ماده :**
ټولي هغه عریضې چـې محکمـې ته وړاندي کیږي ( ۳۳) مادي له توضیحاتو سره سـم دهغوپه مخصوص دفـترکـې قـیداوپه هغوکـې ددفـتر لمبـراونـېټه توضیح شوې دمحکمې رئیس (قاضي) ته وړاندي کیږي . (٥)

**۳۶ ـ ماده :**
څه وخت چې دمحکمـې رئـیس ددې عریضې په خصوص کې هدایت ورکوي =

**ج**: خـلاصۀ مـقصد دعوی بـا تـاریخ وقوع حادثه . (۱)
**د**: امـضاء ویا مهر نمودن عـریضه از جانب عارض وارائه نمرۀ تذکره . (۲)
**هـ**: در حالیکه عارض وکیل ویا وصی باشـد ارائه سـند وکالـت ووصـایت واندراج نمره آن در عریضه وتوضیح محکمه که سند مذکور درآن تر تیب شده باشد . (۳)

**مادۀ ۳۴**:
عریضه حقوقی بصورت مستقیم به محکمه ابتدائیه تقدیم شده میتواند . (۴)

**مادۀ ۳۵**:
تمام عرائضیکه به محکمه تـقدیم میشود مطابق توضیحات ماده (۳۳) در دفتر مخصوص آن قید ودر آن تـاریـخ ونمرهء دفـتر توضیح گردیده به رئـیس (قاضی) محکمه تقدیم میشود . (۵)

**مادۀ ۳۶**:
وقتیکه رئیس محکمه در مورد عریضۀ مذکوره هدایت میدهد صورت =

(**۱**) : الفتاوی الهندية جــ (۳) صــ (۳۲٤) .
(**۲**) شرح المادة (۱۸۱٦) دررالحکام جــ (٤) صــ (۶۲۴) . رهنمايي وثائق ماده (۳۹۲)
(**۳**) : شرح الْمَادَّةُ (۱٥۱٦) دررالحکام جــ (۳) صــ (۶۳۴) . والاتاسي جــ (٦) صــ (۹۱) . الفتاوي الهندية جــ (٦) صــ (۱٤۰) . دررالحکام جــ (٤) صــ (٦۲٤) .
(**۴**) : مبني علي المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .
(**۵**) : شرح المادة (۱۸۱٤) دررالحکام جــ (٤) صــ (٦۲۱) .

دهدايت صورت يي په دفتركې قيد او دهغه په موجب اجرا آت كيږي . (۱)

**۳۷ ـ ماده :**

مدعي د خپلي مفصلي ادعا صورت د د لائلو اودمربوطو اسنادو دتوضيح سره په دوونسخوكې محكمې ته وړاندي كوي (۲)

**۳۸ ـ ماده :**

د دعوى دصحت په صورت كې محكمه دهغويوه نسخه قيد او بله نسخه يې دوخت په ټاكلو سره مدعي عليه ته ابلاغوي اوددعوى دنه صحت په صورت كې مدعي د دعوى په تصحيح كولو مكلف كيږي . (۳)

**۳۹ ـ ماده :**

مدعي عليه مجبوردى چې په ټاكلي وخت كې خپل ځوابونه وليكي اومحكمې ته يې وليږي . (٤)

**۴۰ ـ ماده :**

په داسي حال كې چې مدعي عليه په نوموړي موده كې خپل ليكل شوي ځوابونه محكمې ته ونه ليږي نو دمحاكمې په ورځ دده دخولې دځوابو له مخې دعوى دائريږي . (۵)

هـدايتش در دفـتر قـيد و بـموجب آن اجراأت ميشود . (۱)

**مادۀ ۳۷ :**

مدعى صورت ادعاى مفصل خود را با تـوضيح دلائـل اسـناد مربوطه بداخل دو نسخه بمحكمه تقديم ميدارد. (۲)

**مادۀ ۳۸ :**

در صورت صحت دعوى محكمه يک نسخۀ آنرا قيد و نسخۀ ديگر را با تعين وقت بمدعـى عليه ابلاغ ميكـنـد ودر صورت عدم صحت دعوى ، مدعـى به تصحيح دعوى مكلف ميشود . (۳)

**مادۀ ۳۹ :**

مدعى عليه مجبور است در ظرف وقت معينه جوابات خود را تحريرا بمحكمه ارسال دارد . (۴)

**مادۀ ۴۰ :**

در حاليكه مدعى عليه در ظرف مدت مذكور جوابات تحريرى خود را بمحكمه نفرستد در روز محاكمه بموجب جوابات شفاهى او دعوى دائر ميشود . (۵)

---

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام . الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٤ ) مجلة الاحكام .

(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٦ ) مجلة الاحكام .ودررالحكام جــ (۴) صـــ (۶۲۵) .المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۳) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٦ ) دررالحكام جــ (۴) صـــ (۶۲۶) . مبني علي المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۴) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۵) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٦ ) مجلة الاحكام .

**۴۱ ـ ماده :**
د لزوم له مخي دمحكمې دتبليغاتو موده له ټاكلې اندازې څخه درې ورځې اوږديدای شي ، مگر د علتونو د اسبابو توضيح د تبليغ د پاڼې په شا ضروري دی . (۱)

**مادهٔ ۴۱ :**
عند الزوم مدت تبلیغات محکمه از اندازهٔ معینه ( سه روز ) تمدید شـده میتواند اما توضیح اسباب علل درظهر (عقب) ورق تبلیغ ضروری است. (۱)

**۴۲ ـ ماده :**
په بسيطو ( جزئـي ) دعووكې د جگړه كـوونكو د رضـا په شـرط تحـريري تبليغات ضرورت نه لري . (۲)

**مادهٔ ۴۲ :**
در دعاوی بسیطه (جزئی) بشرط رضای متخاصمین تبلیغات تحریری ضرورت ندارد . (۲)

**۴۳ ـ ماده :**
د استدعاء دمراتبوله اكمال نه وروسته محكمه كولای شي چې د يوه خصم د شفاهي غوښتني په اثر د واړه خواوي محكمې ته راحاضركړي اوددوی دعوی تردوران لاندې ونيسي اوفيصله يې كړي (۳)

**مادهٔ ۴۳ :**
بعد از اکمال مراتب استدعا محکمه میتواند که به اثر خواهش شفاهی یکی از خصمین طرفین را به محکمه احضار ودعوی شانرا تحت دوران گرفته فیصله نماید . (۳)

**۴۴ ـ ماده :**
په دې حال کـې چـې يوطرف په هغـې مودې کـې چـې دمحكمې له خوا ورته ټاكله كيږي د خپل ځواب پاڼه وړاندې نکـړي محكمه د بل جانب د غوښتنـې په اثر هغه راجلبوي . (٤)

**مادهٔ ۴۴ :**
در حالیکه یکی از طرفین در مدتیکه از جانب محکمه برایش تعین میگردد ، ورق جواب خود را تقدیم ننماید محکمه باثر درخواست جانب دیگر آنرا تـحت جلب قرار میدهد . (۴)

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱٦۱۸ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (۱۵۸) . الفتاوى الكاملية صـ ( ۱۱۷) (۱۱۳) .
(۴) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۳ ) مجلة الاحكام .

**۴۵ ـ ماده** :
کله چې مدعي علیه ددعوی ځواب ور کوي د محکمې کاتب مکلف دی د هغه ځواب د محکمې له حاکمه هیئت څخه دیوه تن په حضور کې تثبیت کړي او موضوع محکمې ته وړاندي کړي . (۱)

**۴۶ ـ ماده** :
مدعي کولای شي چې دمقبولو عذرونولمخي بلي ورځي ته دمحاکمې ځنډول وغواړي . (۲)

**۴۷ ـ ماده** :
دهغو پاڼو ابلاغ چې هریو خصم یې د ځواب په غرض بل جانب ته غواړي دهغو اشتمال په لاندنیو مطالبو ضروري دی :
**الف** : ـ تعهدات او احوال چې د ادعا یا مدافعې سبب وي .
**بـ** : دهغه اثبات صورتونه چې ددعوی یا مدافعې اساس وي .
**حـ** : د اصلي دعوی او دهغې د فروعو او دمدعي علیه د اعتراضاتو مطالب .
**د** : نور مطالب او د مدعي علیه اصلي او فروعي مدافعات .
**هـ** : دشرعي وسائلو، عللو، اسبابو اومووادو تفصیل چې هریو طرف یې لري . (۳)

**مادۀ ـ ۴۵** :
وقتیکه مدعی علیه به جواب دعوی می پردازد کاتب محکمه مکلف است جواب اورابحضور یکی از هیئت حاکمه تثبیت نماید وموضوع را به محکمه تقدیم دارد. (۱)

**مادۀ ـ ۴۶**:
مدعی میتواند نظربه اعذارمقبوله تاخیر محاکمه را بروز دیگر مطالبه نماید. (۲)

**مادۀ ـ ۴۷** :
ابلاغ اوراقی را که هریک از خصمین بغرض جواب بجانب دیگر مطالبه مینماید اشتمال آن برمطالب آتی ضروری است :
**الف**:تعهدات واحوال که سبب ادعا یا مدافعه باشد .
**ب**: صورتهای اثباتیکه اساس دعوی یا مدافعه باشد.
**ج**: مطالب اصل دعوی و فروع آن و اعتراضات مدعی علیه .
**د**: سایر مطالب و مدافعات اصلی و فرعی مدعی علیه.
**هـ**:تفصیل علل و اسباب، مواد و وسائل شرعی که هر یک از طرفین دارد . (۳)

(**۱**):الْمَادَّةُ (۱۸۰۱)مجلة. شرح المادة (۱۸۱٦) دررالحكام جـ (٤) صـ (۶۲۶).الموسوعة الكويتية جـ (۳۳) صـ (۳۰۹).
(**۲**) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۲۸ ) دررالحكام , جـ (٤) صـ (٦٦٤) .
(**۳**) : الفتاوى الكاملية صـ (۱۱۱) .

**۴۸ـ ماده :**
محكمې ته دطرفينوپه جلب او احضار كې دعريضو د ترتيب مراعات ضروري دی . (١)

**۴۹ ـ ماده :**
دجلب پاڼې عموما دوه نقله وي په هغوكې د لانـدنيو مطالبو مراعات ضروري دی :
**الف** : ـ دنيټې ټاكنه ، دورځې، مياشت او كال .
**ب** : دمجلوب نوم ، شهرت ، د استوګنې ځای او تابعيت .
**ج** : ـ دهغې ورځې ټاكل چې د واړو خواوې محكمې ته حاضريږي .
**د** : ـ د موضوع ټاكل . (٢)

**۵۰ ـ ماده :**
كله چې دجلب پاڼه پخپله مجلوب ته سپارله كيږي دده دجلب دګندې په پاڼه كې دهغه د استحضاريت اخيستل ضروري دي . (٣)
**تبصره** :له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**۵۱ ـ ماده :**
كه چيري طلب شوی سړئ ددې عـذر له مخې چې مهر يا امضائې نه لرله د استحضاريت له وركولو نه ئي ځان =

**مادۀ ۴۸** :
در جلب واحضار طرفـين بـمحكمه مراعات ترتيب عرايض ضروراست.(١)

**مادۀ ۴۹** :
اوراق جلب عموماً دو نقله بوده رعايت مطالب آتي در آن ضروری است :
**الف**- تعين تاريخ به تفصيل روز، ماه و سال.
**ب**: اسم، شهرت، محل اقامت و تابيعت مجلوب .
**ج**: تعين روزيكه درآن طرفين بمحكمه حاضر ميشود .
**د**: تعين موضوع . (٢)

**مادۀ ۵۰**:
وقتيكه ورق جلب بـشخص مجلوب سپرده ميشود گرفتن استحضاريت در ورق كنده جلب او ضروری است. (٣)
**تبصره**:حالات اضطراری از حكم ماده فوق مستثنی است.

**مادۀ ۵۱**:
هرگاه شخص طرف جلب از استحضاريت به عذر نداشتن مهر و يا ندانستن سواد دليل آورد كيفيت آن در ورق دوم =

(**١**) : الْمَادَّةُ (١٨١٠) مجلة الاحكام .
(**٢**) : المادة (١٨٠١) مجلة الاحكام .وشرح الْمَادَّةُ (١٨٣٤) دررالحكام جـــ (٤) صـــ (٦٧٧) .
(**٣**) : شرح المادة (١٨٣٣) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٧٦) .

=وغړاوه ، نوکيفيت ئې په دويمه پاڼه کې ليکل کيږي او له لاندنيو کسانو څخه ديوه لاسليک ورباندي حتمي دی .

**الف**: دکلي دملک يا سپين ږيري لاسليک .

**بـ** : که ملک او سپين ږيرئ يې نه درلود نو د کلي د دوه يا درې تنو مخورو لاسليک .

**جـ** : په دې صورت چې مجلوب شخص مستخدم وي دهغه داداري دآمرلاسليک

**د** : په ښاري کسانوکې دکوڅې د وکيل يا د دوو تنو همسايه ګانو لاسليک .

**هـ** : په دې صورت چې له دې کسانو څخه يوهم پيدانشي په خپله مجلوب شخص دي محکمې ته احضارکړي . (۱)

**۵۲ ـ ماده** :

په کومه جلب نامه کې چې دا پورتني مراتب مراعات شوي نه وي د اعتبار وړنه بلل کيږي . (۲)

**۵۳ ـ ماده** :

دپورتني هدايت د نه اجراء کولوپه صورت کې دجلب موظف کسان مسؤل دي . (۳)

= تحرير گرددامضای يکی از اشخاص آتی بر آن حتمی است.

**الف**: امضای ملک و موی سفيد قريه.

**ب** : درصورت نبودن ملک وموی سفيد امضای دو يا سه نفر از روشناس قريه .

**جـ** : در صورتيکه شخص مجلوب مستخدم باشد امضای آمر اداره آن .

**د**: امضای وکيل گذر دراشخاص شهری و يا دو نفر همسايه.

**هـ** : در صورتيکه يکی از اين اشخاص موجود نشود خود شخص مجلوب را بمحکمه احضار نمايد . (۱)

**مادهٔ ۵۲** :

در جلب نامه که مراتب فوق مراعات نشده باشد به آن ترتيب اثر داده نمی شود . (۲)

**مادهٔ ۵۳** :

در صورت فرو گذاشت هدايت فوق اشخاص مؤظف جلب مسؤل اند . (۳)

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(۲) : شرح المادة (۱۸۳۳) جـ (٤) صـ (٦٧٦) دررالحکام .

(۳) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

**تبصره** : له پورتنيو (۵۱ ــ۵۲ ــ ۵۳ ) موادو څخه اضطراري حالات مستثنی دي . (۱)

**۵۴ ـ ماده** :

په داسي حال کي چي دمجلوب داقامت محل دمحکمي په محل کي وي محکمي ته دهغه دحضور لږ موده له دري ورځو څخه کمه نه ده ، او په دي صورت چي د مجلوب دا ستوګني ځای ليري وي برسيره په پورتنۍ مودي دمسافي دليري والي واټن رعايت ضروري ده . (۲)

**۵۵ ـ ماده** :

تلواري دعوی له پورتنيو موا دو څخه مستثنی ده او د تلوار په صورت کي محکمه کولای شي چي د استدعا د وړاندي کيدو په لومړۍ يا دويمه ورځ ترجلب لاندي کسان را حاضرکړي .

**تبصره** :

تلواري دعوی هغه دعوی ده چي ژر تر ژره غـور پکښــې پــه کاردی او د وخت په تيريدو اصل مدعی به له منځه ځـي او په هغي کي ځنډ د کُلــي ضرر سبب ګرځي . (۳)

**تبصره**: از حکم مواد فوق (۵۱ــ ۵۲ ــ۵۳) حالات اضطراری مستثنی است . (۱)

**مادهٔ ـ ۵۴** :

در حالیکه محل اقامت مجلوب در محل محکمه باشد ، اقل مدت حضور آن بمحکمه از سه روز کم نمی باشد و در صورتیکه محل اقامت مجلوب بعید باشد علاوه بمدت فوق مراعات بعد مسافه ضروری است . (۲)

**مادهٔ ـ ۵۵**:

دعاوی مستعجله از مواد فــوق مستثنی است، و در صورت استعجال محکمه مـیتواند که اشخاص طـرف جلب را بروز اول یا دوم استدعا احضار نماید .

**تبصره**:

دعــاوی مستعجله دعاوی است که رسیدگی فوری را در آن ایجاب میکند و بگذشتن وقت اصل مدعی به از بین میرود و یا تأخیر در آن سبب ضرر کلی میگردد . (۳)

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .
(۲) : شرح المادة (۱۸۳٤) للاتاسي جــ (٦) صــ (١٥٤) والمادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .
(۳) : الفتاوى الهندية جــ (۳) صــ (۳۲۱) . شرح المادة (۱۸۱۰) دررالحكام . (٤) صــ (٦١٨) .

**۵۶ ـ ماده :**

د قوي قرینو او رسمي اسنادو د وجود په صورت کې دمدعي دغوښتنې په اثر محکمه کولای شي لزومًا له مدعي علیه څخه داسي ضمانت واخلي چې په مدعی به کې کومه خساره پیښه نه شي .

**توضیح :**

څرنګه چې دمدعي ادعا نظر قرائنو او اسنادوته د اثبات پلوته غالبه شي ، نو ددې لپاره چې مدعي علیه له وخت څخه استفاده ونکړي او دمدعی به د قطعي اثبات او دمحکمې د فیصلې د صدور تر وخته پوري له منځه ونشي ایستلای مدعي علیه په ضمانت ورکولو مکلف کیږي . (۱)

*****
***
*

**مادۀ ـ ۵۶ :**

در صورت وجود قرائن قوی و اسناد رسمی در اثر مطالبه مدعی محکمه میتواند لزوماً از مدعی علیه تضمینی مبنی بر عدم ایراد خساره در مدعی به ، بگیرد .

**توضیح :**

چون ادعای مدعی نظر به قرائن واسناد به طرف اثبات غالب میشود برای آنکه مدعی علیه از وقت استفاده نکرده و مدعی به را تازمان اثبات قطعی وصدور فیصله محکمه از بین برده نتواند مدعی علیه به تضمین مکلف میگردد . (۱)

*****
***
*

(۱) : مبني علي المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

## دویم فصل

## د محکمې جریانات او د انضباط ساتنه

**۵۷ ـ ماده** :
ټولـــي دعوې په عدلیه محکموکې په ښکاره صورت حل او فصل کیږي .
**تبصره** :
د فیصلې ښـکاره والی په لانـدي ډول صورت مومي :
**الف** :ـ په غیر تعطیل ورځوکې قضائې مجلسونه کول .
**ب** : ـ دقضایې مجلسونو کول دهغو په معین ( ټاکلي ) ځای کې .
**ج** : ـ د ټولو خلقو د پاره محکمې ته د حاضریدو اجازه ورکول .(۱)
**تبصره** : له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .
**۵۸ ـ ماده** :
د محاکمې دجریان په ترځ کې انتظام او انضباط دمحکمې په رئیس پوري اړه لري . (۲)

## فصل دوم

## جریانات محکمه و حفظ انضباط

**مادۀ ـ ۵۷**:
تمام دعاوی در محاکم عدلیه بصورت علنی حل و فصل میگردد.
**تبصره**:
علنی بودن فیصله به ترتیب آتی صورت میگیرد :
**الف**: انعقاد مجالس قـضائـی در ایام غیر تعطیل .
**ب**: انعقاد مجالس قـضائـی در جای معین آن .
**ج** : دادن اجازه حضور بمحکمه بـرای عامه مردم . (۱)
**تبصره**: حالات اضطراری از حکم ماده فوق مستثنی است.
**مادۀ ـ ۵۸**:
انتظام وانـضباط در اثـــنای جــریان محاکمه برئیس محکمه مربوط است .
(۲)

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام . والْمَادَّةُ ( ۱۸۱۵ ).مجلة الاحكام .ودررالحكام جـ (٤) صـ (٦٢٣) .
(۲) : ( ۱۸۲٤ ) مجلة الاحكام . ودررالحكام جـ (٤) صـ (٥٨٧) وصـ (٦٥٦) .

**۵۹ ـ ماده :**

که یوخصم د بل طرف داظهاراتوپه ترځ کې پخوا دهغه دخبرو له تمامیدو څخه په مقاطعه یا جرحه یا دهغه د خبرو په درواغولوباندي اقدام وکړي یا د رکیکو ( ناوړه ) الفاظوداستعمال په وسیله چې دهغه تحقیر ( سپکاوی ) ورباندي وکړي د محکمې د قاضي یا رئیس له خوا به دهغه مخنیوی کیږي . (۱)

**۶۰ ـ ماده :**

هغه کسان چې دمحاکمې د جریاناتو د اوریدودپاره محکمې ته حاضریږي پرده باندي دراتلونکومراتبو مراعات حتمي دی :

**الف** : لازم دی چې پټه خوله دمحکمې جریانات واوري .

**بـ** : دمحکمې د رئیس انضباط او امر دي اطاعت کړي .

**جـ** : هریو سامع په لاندي صورتونوکې له محکمې څخه ایستل کیږي :

۱.دمحکمې داداري ضوابطو اطاعت نه کول

۲ ـ داسي اشارې او حرکت ته اقدام چې دیوه طرف یا دمحکمې د رئیس یا دمحکمې د غړیو په افاداتوکې په تحسین یا تقبیح یا تلقین یا دمحکمې په حکم یا قرار دلالت ولري . =

**مادۀ ۵۹:**

هرگاه یکی از خصمین در اثنای اظهارات طرف دیگر قبل از اتمام کلام او بمقاطعه و یا جرح و یا تکذیب کلام او اقدام نماید یا بوسیله استعمال الفاظ رکیکه به تحقیر او مبادرت کند از جانب قاضی یا رئیس محکمه جلوگیری میشود . (۱)

**مادۀ ۶۰ :**

اشخاصیکه برای استماع جریانات محاکمه بمحکمه حاضر می شوند مراعات مراتب آتی بر آنها حتمی است .

**الف** : لازم است خاموشانه جریانات محکمه را بشنود .

**ب** : اوامر انضباطی رئیس محکمه را اطاعت نمایند .

**جـ**: هر یک از سامعین در صورت های آتی از محکمه اخراج میشود .

۱ـ عدم اطاعت بضوابط اداری محکمه

۲ـ اقدم باشاره وحرکتیکه بر تحسین ویا تقبیح یا تلقین یکی از طرفین یا رئیس محکمه یا اعضای محکمه ویا حکم وقرار محکمه دلالت داشته باشد . =

(۱): الْمَادَّةُ ( ۱۸۲٤ ) مجلة الاحکام . ودررالحکام جـ (٤) صـ (۵۸۷) وصـ (٦۵٦) .

= ۳ ـ په محکمه کې د شورماشور سبب گرځي . (۱).

**۶۱ ـ ماده :**
که چیري د غوغا یا دمحکمې د شؤناتو (کارو) داختلال (گډوډي) سبب پخپله د محکمې کوم غړئ وي برسیره د (۶۰) مادې د (جـ) دبند په تطبیق په شرعي تعزیر هم محکو میږي . (۲)

**۶۲ ـ ماده :**
هغه کسان چې په محکمه کې داسي حرکت ته اقدام وکړي چې دمحکمې دغړیوماموړینوپه شؤناتو مصادم وي یا هغوته ډار او سترگتورنه ورښکاره کړي ( تهدید ورکړي ) نو څرنگه چې په دې ځای کې پخپله دمحکمې اهالي مدعي واقع شوي دي نودواقعي صورت دقانوني بازخواست په غرض حکومتونو اومربوطو دائرو ته اطلاع او پخپله مرتکب شخص هملته سپارل کیږي،په نژدې بله محکمه کې فیصله کیږي . (۳)

= ۳ ـ در محکمه سبب غوغا گردیدن . (۱).

**مادهٔ ۶۱ :**
هرگاه سبب غوغا یا اختلال شئونات محکمه ، یکی از منسوبین خود محکمه باشد علاوه از تطبیق بند (ج) ماده (۶۰) به تعزیر شرعی محکوم میشود . (۲)

**مادهٔ ۶۲ :**
اشخاصیکه در محکمه بحرکتی اقدام نمایند که به شئونات اعضاء و مامورین محکمه مصادم باشد و یا مرتکب تخویف و تهدید اوشان گردد ، چون خود اهالی محکمه در ین مورد مدعی واقع شده اند ، صورت واقعه بغرض باز خواست قانونی به حکومات و دوائر مربوطه اطلاع و شخص مرتکب بآنجا سپرده میشود ، بمحکمه قریبهٔ غیر حاکمه فیصله میشود . (۳)

***

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۷۹۵ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (۵۸۷) . شرح المادة (۱۷۹۸) دررالحکام جـ (٤) صـ (۵۹٤) . الاتاسي جـ (٦) صـ (۹) .
(۲) : الموسوعة الفقهیه الکویتیة جـ (۱۲) صـ (۲۸۳) .
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۹ ) مجلة الاحکام . ودررالحکام جـ (٤) صـ (٦۱٦) .

## دریيم فصل :
## د خصمينو حضور او د دعوى د ښكاره كولو په كيفيت كې

**۶۳ ـ ماده :**
مدعــي اومدعــي عليه دواړه مكلف دي چې دوى پخپله يا ددوى قانوني وكيلان ياوصيان اوواكداران ددعوى له مربوطو اسنادوسره محكمې ته حاضر شي . (۱)

**۶۴ ـ ماده :**
وكالت په هره محكمه كې دهغې محكمې د فيصلې د صدور تر وخته پوري اعتبار لري پرته له لاندي مواردو : (۲)

**الف** : ـ په وكالت كې تصريح شوې وي چې دا شخص په استدعا او پــر حكم د اعتراض اودمحكمې په استئناف اعاده اوتميز كې هم ځما وكيل دى .

**ب** : ـ په وكالت كــې تصريح شوې وي چــې داشخص ددعوى په مرافعه كــې تر اخيري درجې ځما وكيل دى .

**ج** : په وكالت كې تصريح شوې وي چې دا شخص من كل الوجوه ځما مرخص اومفوض (واک سپارلی ) وكيل دى . (۳)

## فصل سوم
## در حضور خصمين و كيفيت رويت دعوى

**مادۀ ـ ۶۳:**
مدعــی و مدعی عليه مكلف اند كه شخصًا يا وكلاء اوصيا واوليای قانونی آنها با اســناد مربوطه دعوى بمحكمه حاضر شوند. (۱)

**مادۀ ۶۴:**
وكالت درهر محكمه تا زمان صــدور فيصلۀ هــمان محكمه اعــــتبار دارد باستثنای موارد آتی : (۲)

**الف**: در وكالت تصريح شده باشد كه اين شخص در استدعا و اعتراض بر حكم و استيناف واعاده محكمه وتميز نــيز وكيل من است.

**ب** : در وكالت تصريح شده باشد اين شــخص دردعوى مرافعه تا درجه اخـير وكيل من است .

**ج** : در وكالت تصــريح شده باشد اين شــخص من كل الــوجوه وكـيل مــرخص ومفوض من است. (۳)

(۱) : شرح المادة (۱۸۳۶) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٨٢) .شرح المادة (١٨٣٠) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٦٧) .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ١٥٢٦ ) مجلة الاحكام . شرح الْمَادَّةُ ( ١٥٢١ ) دررالحكام جـ (٣) صـ (٦٥٨) . الاتاسي جـ (٦) صـ (٩١)
(۳) : شرح الْمَادَّةُ ( ١٥١٦ ) دررالحكام جـ (٣) صـ (٦٣٥) .

**۶۵ ــ ماده :**
دمحكمو مامورين وكالت نشي كولاى. (۱)

**۶۶ ــ ماده :**
دمحكمومامورين دخپلي ښځي ، پلار نيكه ،اولاد ، اونمسيانوپه دعوى كې له پورتنۍ مادې څخه مستثنى دي . (۲)

**۶۷ ــ ماده :**
د محكمو مامورين په خپلو دعوو كې اصالتًا او دپورتنۍ ( ۶۶) مادې داخلو كسانو په دعوى كې وكالتًا او وصايتًا او ولايتًا اقدام كولاى شي . (۳)

**۶۸ ــ ماده :**
هغه متخاصمين چې په ټاكلي ورځ محكمې ته حاضريږي دمؤظفوكسانوله خوا په رَوَنْ (ترتيب) سره د محكمې كوټې ته بيول كيږي اوپه لاندي ترتيب سره ددوى فقرې دوظيفه لرونكوكسانو ترغورلاندي نيولي كيږي : (۴)

**الف** :ـ محكمه تحقيق كوي چې كوم يو له دوى نه اصل دى اوكوم يو له دوى نه وكالتًا ، وصايتًا ، او ولايتًا محكمې ته راغلى دى . (۵)

**مادۀ ــ ۶۵ :**
مامورين محاكم وكالت كرده نميتوانند . (۱)

**مادۀ ــ ۶۶ :**
مامورين محاكم در دعوى زوجۀ خود يا يكى از آبا و اجداد و اولاد و احفادش از ماده فوق (**۲۵**) مستثنى است. (۲)

**مادۀ ــ ۶۷ :**
مامورين محاكم در دعوى خود شان اصالتاً ودر دعوى اشخاص مندرجه ماده فوق(۶۶) وكالتًا ، وصايتًا و ولايتًا اقدام كرده ميتواند . (۳)

**مادۀ ــ ۶۸ :**
متخاصمى كه بروز معين بمحكمه حاضر ميشوند از طرف اشخاص مؤظف برعايت ترتيب باطاق محكمه برده ميشود وبه ترتيب آتى فقرات شان از طرف اشخاص وظيفه دار تحت رسيد گى قرار ميگيرد . (۴)

**الف**: محكمه تحقيق مينمايد كه كدام يكى از ايشان اصل است و كدام يكى از ايشان وكالتًا ،وصايتًا و يا ولايتًا بمحكمه آمده است . (۵)

---

(**۱**) : الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .وشرح الْمَادَّةُ ( ١٨٠٨ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦١٥).
(**۲**) : الْمَادَّةُ ( ١٥١٦ ) مجلة الاحكام .
(**۳**) : الْمَادَّةُ ( ١٨٠٩ ) مجلة الاحكام .
(**۴**) :الفتاوى الهندية جـ (٣) صـ (٣٢١).الْمَادَّةُ (١٨١٠) مجلة الاحكام . وشرحها دررالحكام جـ (٤) صـ (٦١٧) معين الحكام صـ (٢٣) .
(**۵**):شرح المادة (١٨١٦) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٢٤) .

بـ : ـ هغه کسان چې وکالتًا محکمې ته حاضرېږي د محکمې مؤظفين د دوی وکالت خط ( د صلاحيت سند ) اخلي او په دوسيه کې يې ږدي . (۱)

جـ : ـ وروسته د ( ۶۸) مادې د الف او ب دبند له کتلو څخه لاندني اجراآت کيږي :

۱ ـ د مدعي استدعا سره دهغې لائحې او ټولو پاڼو لوستلې کيږي .

۲ ـ دمدعي عليه پاڼې لوستلې کيږي .

۳ ـ د مدعي او مدعي عليه افاداتوته په ترتيب غوږ نيول کيږي . (۲)

**۶۹ ـ ماده :**

وروسته له هغه چې محکمې د پاڼو مرتبه دوسيه وکتله لاندې مراتب تر اجرآء لاندې نيسي .

**الف** : متخاصمين د محاکمې په ټاکلې ورځ راغواړي .

**ب** : داپاڼې بيا د متخاصمينو په حضور کې لولي . (۳)

**جـ** : په دې صورت چې دپاڼوبيا لوستلو ته ضرورت نه وي او يا وروسته دپاڼو له لوستلونه لومړی مدعي ته موقع ور کوله کيږي چې ترڅو خپله دعوی سره =

**ب** : اشخاصيکه وکالتًا بمحکمه حاضر ميشوند مؤظفين محکمه وکالت خط (سند صلاحيت) اوشان را گرفته داخل دوسيه ميگذارد . (۱)

**جـ**: بعد از ملاحظات بند الف وب ماده (۶۸) اجـراأت ذيل صورت مـيگيرد :

۱ ـ استدعای مدعی با لائحه وکليه اوراق او قرائت ميشود .

۲ـ اوراق مدعی عليه قرائت ميشود .

۳ـ افادات مدعـی ومدعـی عليه به ترتيب گوش گرفته ميشود . (۲)

**مادۀ ـ ۶۹ :**

بعد از اينکه محکمه دوسيه مرتب اوراق را ملاحظه مينمايد مراتب آتی را زير اجراء ميگيرد .

**الف**: متخاصمين را بروز معين محکمه جلب ميدارد .

**ب** : اوراق مـذکور را دوباره بحضـور متخاصمين قرائت ميکند . (۳)

**جـ**: درصورتيکه به قرائت دوباره اوراق ضرورت نباشد و يا بعد از قرائت اوراق اولاًبه مدعی موقع داده ميشود که دعوی خود را بامطالب اصلی وفرعی آن بيا ن =

---

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۱٤ ) دررالحکام جــ (٤) صـــ (٦٢١) .

(۲) : شرح المادة (۱۸۱٦) دررالحکام جــ (٤) صـــ (٦٢٥) .

(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحکام .

=دهغې له اصلي او فرعي مطالبو بیان او توضیح او محتویات یې څرګند کړي . (١)

**د** :ــ وروسته د مدعي د توضیحاتو له تمامیدو څخه مدعي علیه ته موقع ورکول کیږي چې ترڅوخپلې مدافعې او اعتراضات سره دهغو له مشتملاتوبیان کړي . (٢)

**هـ** : د(ب)(ج) ، بند د ضرورت له مخې تکراریږي .

**و** :ــ رئیس یا یوغړئ درئیس په اجازه کولای شي د ابهام په مواردوکې له دواړوخواؤڅخه وضاحت وغواړي . (٣)

**ز** :ــ د محکمې محرر مکلف دی چې د محکمې د رئیس په امر له لائحو یا پاڼو څخه دباندي هغه بیانات چې په حکم کې مؤثروي لکه اقرار ابرآء ضبط یاد داشت کړي ، د محاکمې دختم په وخت کې وروسته له لوستلو دخصمینو او دمحکمې د رئیس په لاسلیک یې ورسوي . (٤)

= وتوضیح نموده محتویات آنرا ارائه نمـایـد . (١)

**د** : بعد از اتمام توضیحات مدعی ، به مدعی علیه موقع داده میشود تا مدافعات واعتراضات خود را بامشتملات آن بیان نماید . (٢)

**هـ** : مراتب بند ( جـ ) و ( ب ) بر حسب اجاب تکرار میشود .

**و** : رئیس محکمه یا یکی از اعضائی باجازه رئیس میتواند در موارد ابهام از طرفین استیضاح نماید . (٣)

**ز** : محرر محکمه مکلف است به امر رئیس محکمه بیانات خارج لوائح و اوراق را که در حکم مؤثر باشد ، مانند اقرار و ابرآء ضبط ویاد داشت نموده و در وقت اختتام محکمه بعد از قرائت بامضاء خصمین و رئیس محکمه برساند . (۴)

***

(**١**) : الْمَادَّةُ ( ١٨١٦ ) مجلة الاحكام . دررالحكام جــ (٤) صـــ (٦٢٤) .
(**٢**) : الْمَادَّةُ ( ١٨١٦ ) مجلة الاحكام . دررالحكام جــ (٤) صـــ (٦٢٦) .
(**٣**) : المادة (١٨١٣) دررالحكام جــ (٤) صـــ (٦٢١) .
(**۴**) : شرح المادة (١٨١٦) دررالحكام جــ (٤) صـــ (٦٢٥) .المادة (١٧٣٨) الاتاسي جــ (٥) صـــ (٣٨٧ ــــ ٣٨٨)

**۷۰ــ ماده :**
که یوه طرف د دعوی د جریان په ترڅ کې هغه اثباتي پاڼې ښکاره کړي چې دهغو پاڼو په جمله کې چې محکمې هغه په ټاکلي موده کې دده خصم ته لیږلې وې شاملې نه دي نو محکمه دا پاڼې بې له لاندنیو موجباتو قبلولای نشي : (۱)

**الف** : ــ د محکمې قانع کول په دې چې ددې پاڼو څرګندول په هغه وخت کې ممکن نه وو .

**ب** : ــ ددې پاڼو د څرګندولو موقع نه وه راغلې .

**ج** : ــ د یوه بل معقول عذر څرګندول ددې پاڼو دنه ورکولو په خصوص کې .

**مادۀ ــ ۷۰**:
هرگاه یکی از طرفین در اثنای جریان دعوی اوراق اثباتیه را ظاهر نمود که در جملۀ اوراقی که محکمه آنرا در ظرف مدت معین بخصم او فرستاده بود شامل نبود ، محکمه اوراق مذکور را بدون موجبات آتی قبول کرده نمیتواند : (۱)

**الف**: اقناع محکمه به اینکه اظهار اوراق مذکور در آن وقت ممکن نبود .

**ب**: موقع ارائه اوراق مذکور نیامده بود.

**ج**:اظهار عذر معقول دیگری ازندادن اوراق مذکور.

**۷۱ــ ماده :**
د ( ۶۹) مادې د ( الف ) ، ( باء) او جیم ، په صورتونو کې محکمه ددې پاڼو په اخیستلو مکلفه ده او ددې پاڼو د ابلاغ په کتنه سره محاکمه بل وخت ته ټالوي . (۲)

**مادۀ ۷۱** :
در صورتهای بند (الف) ( باء) و ( جیم ) ماده ( ۶۹ ) محکمه به گرفتن اوراق مذکور مکلف است ومحاکمه را به ملاحظه ابلاغ اوراق مذکور به وقت دیگری موکول میدارد . (۲)

( ۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

( ۲) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

**۷۲ ـ ماده :**

متخاصمین کولای شي خپلي هغه دعوی اومدافعې چې لائحوکې د بل جانب د ابلاغ دپاره محکمې ته وړاندي کړې دي اصلاح او تعدیل کړي په دې شرط چې داصلاح ددعوی اودفاع په ماهیت کې دزیاتوالي اویا نقصان له حیثه کوم تغیر پېښ نکړي . (۱)

**۷۳ـ ماده :**

په دعوی کې زیاتوالی اونقصان چې له ګټي اوخسارې څخه پیداوي له ( ۷۲ ) مادې څخه مستثنی دي اومدعي کولای شي چې داصلي دعوی په ترڅ کې دهغه ادعا وکړي . (۲)

**۷۴ ـ ماده :**

شـرط دی چـې متخاصمین ټـول خپل مدعیات اومدافعات چې دهغو په جمله کې ابتدائي اعتراضات هم شامل دي غونډ یو ځلي تسلیم کړي . (۳)

**۷۵ ـ ماده :**

متخاصمینو ته اجازه نشته چې د دوی دمدعیاتو ،مدافعاتواواعتراضاتودهرجزء په مقابل کې چې په یوه صورت دعوی کې راغلي دي له محکمې څخه فیصله وغواړي (٤)

**مادۀ ـ ۷۲ :**

متخاصمین میتوانند دعاوی و مدافعه خودها را که بداخل لوائح جهت ابلاغ بجانب دیگر بمحکمه تقدیم نموده اند ،اصلاح و تعدیل نمایند اما مشروط بر اینکه اصلاح مذکور از حیث زیادت و یا نقصان در ماهیت دعوی و دفاع تغییری وارد ننماید . (۱)

**مادۀ ۷۳ :**

زیادت و نقصان در دعوی که از منافع و خساره ناشی باشد از مادۀ (۷۲) مستثنی است و مدعی میتواندآنرا درضمن دعوی اصلی ادعا نماید . (۲)

**مادۀ ۷۴ :**

شرط است که متخاصمین تمام مدعیات ومدافعات خود را که در جملۀ آن اعتراضات ابتدائیه نیز شامل است ، جمعًا یکبار تسلیم نمایند . (۳)

**مادۀ ۷۵ :**

بمتخاصمین اجاز نیست که در مقابل هرجزء مدعیات، مدافعات واعتراضات شان که دریک صورت دعوی آمده است فیصله از محکمه مطالبه نمایند . (۴)

(۱) : شرح لْمَادَّةُ ( ۱۸۱۶ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦٢٥) .

(۲) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(۳) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحکام جـ (٤) صـ ( ٦۹۱) .

(۴) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

**۷۶ ـ ماده :**
محکمه د متخا صمينو د مدعياتو، مدافعاتو، اعتراضاتو ټولو اجزاؤ په مقابل کې يوه فيصله صادر وي . (۱)

**۷۷ ـ ماده :**
په هغو مواردوکې چې دصورت حساب وړاندي کېدو يا د پوهـ اوفني کسانو بحث ته ضرورت پېښ شي محکمه په دې مواردوکې لومړی د ابتدائي قرار په صادر ولو اقدام کوي ، وروسته له هغه د دعوی په اساس حکم کوي . (۲)

**۷۸ ـ ماده :**
که چيري دمدعي يا مدعي عليه هويت محکمې ته مشتبه وي او دهغې ادعا په خصوص کې چې په محکمه کې يې کوي نو هغه سند چې دهغه په اساس اثبات شي چې دعوی يې خپله ده له ده څخه نه وي په دې صورت کې محکمه کولای شي چې دده په خصوص کې د کلي له سپين ږيري ،صنفي وکيل او دده داداري آمر څخه دهغه دنوم ، شهرت ، کسب ، د اوسېدو ځای استيضاح وکړي . (۳)

**مادهٔ ـ ۷۶ :**
محکمه درمقابل مجموع اجزاء مدعيات ، مدافعات واعتراضات متخاصمين فيصله واحدی اصدار مينمايد . (۱)

**مادهٔ ـ ۷۷ :**
در مورديکه تقديم صورت حساب يا بحث اهل خبرت وفن ضرورت افتد محکمه درين موارد اولاً به اصدار قرار ابتدائی اقدام می نمايند و بعداً باساس دعوی حکم مينمايند . (۲)

**مادهٔ ۷۸ :**
هرگاه هويت مدعی يا مدعی عليه نزد محکمه مشتبه باشدودرموردادعائيکه در محکمه مينمايد سندی که باساس آن اثبات شود که از خودش ميباشد نزدش نباشد در آن صورت محکمه ميتواند که راجع به او از موی سفيدان قريه، وکيل صنفی وآمرادارهٔ اودرمورد اسم، شهرت ، صنعت ومحل اقامت او استيضاح نمايد. (۳)

***

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .
(۲) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .
(۳) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام . الْمَادَّةُ ( ۱۷۱۷ ) مجلة الاحكام .

**۷۹ ـ ماده :**
ددعوى انتقال له يوې محكمې بلې محكمې ته وروسته ددعوى له جريان څخه كېداى نشي . (۱)

**۸۰ ـ ماده :**
كه محكمه ديوه طرف په دعوى كې كوم ابهام وليد، نو دهغې لازم تفصيل اواستيضاح دي په خوله او ليكنه سره وغواړي . (۲)

**۸۱ ـ ماده :**
كه ټولي دعوى او دحكم صادرول په لومړۍ جلسه كې ممكن نشو، په داسي حال كې چې مدعي عليه د استوګني ټاكلى ځاى ونه لري محكمه په لاندي ډول اقدام كوي :

**الف** : ـ دهغه داستوګني ځاى ټاكي او د ضبط په دفتركې يې قيدوي .

**ب** : كه يې د استوګني د ځاى له ښودلو ځان وغړاوه په دې حال كې چې دده دتېښتي ويره وي نو دمدعي دغوښتني له مخي له هغه څخه دحاضرېدو ضامن اخلي چې د ضرورت په وخت كې يې محكمې ته حاضر كړي .

**ج** : ـ كه د ضامن له وركولو څخه ئي منع راوړه نو محكمه هغه بندي كوي اودعوى يې په ټاكلي وخت ترغورلاندي نيسي . (۳)

**مادۀ ـ ۷۹ :**
انـتقال دعوى از يـک محكـمه بمحكمه ديگر بعد از جريان دعوى شده نميتواند . (۱)

**مادۀ ـ ۸۰ :**
هـرگاه محكمه در دعوى يكـى از طرفين ابهامى مشاهده نمود تفصيل و استيضاح لازمه آنرا شفاهًا وتحـريرًا مطالبه نمايد . (۲)

**مادۀ ـ ۸۱ :**
هـرگاه تمام دعوى واصدار حكم در جلسۀ اول ممكن نشد در حاليكه مدعى عليه محل اقامت معين نداشته باشد، محكمه ذيلاً اقدام مينمايد :

**الف**: محل اقامت او را معين كرده در دفتر ضبط قيد ميكند .

**ب** : هـرگاه از تعـين محل اقـامت استنكاف ورزد در حاليكه خوف فرار او باشد بنأ بر طلب مدعى از نزدش ضامن حضور كه او را عندالزوم بمحكمه حاضر نمايد گرفته ميشود .

**ج**: هرگاه از تقديم ضامن امتناع آورد، محكمه او را توقيف نموده دعوى او را بروز معـين آن تحت رسـيدگى قـرار

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحكام جـ (۴) صـ (۶۹۲) .
(۲) : معين الحكام صـ (۲۳) .
(۳) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

**تبصره** : پورته دجيم په فقره کې بندي کېدل مصلحتًا د قاضی رايي ته مفوض دی . (۱)

**۸۲ ـ ماده** :

که يو له خصمينو څخه د محاکمـې د جريان په ترڅ کې مړ شو نو د بل خصم په غوښتنه سره دهغه مړه ورثه محکمې ته جلبوي او محاکمه د توقف له نقطې څخه شروع او تماميږي . (۲)

**۸۳ ـ ماده** :

ددعوی اودهغې دملحقاتو جريان دمجلة الاحکام ددعوی (۱۴) کتاب اودبينات (۱۵) کتاب په مطابق صورت نيسي .

**۸۴ ـ ماده** :

که مدعي د خپلي مدعا د اثبات دپاره مهلت وغواړي محکمه په لازم اندازه مهلت ورکوي . (۳)

**۸۵ ـ ماده** :

که دمدعـي ددعوی يا دمدعـي عليه د مدافعاتو په متعلق په رسمي دائروکې داسـي پاڼـي او اسناد موجودوي چې هغه ته مراجعـه لازمـه وي د هغو د په لاس راوړو دپاره مهلت ورکاوه کيږي . (٤)

**تبصره** : درفقره (ج) بندي کردن مصلحتًا به رأيي قاضي مفوض است . (۱)

**مادۀ ـ ۸۲** :

هرگاه يکی از خصمين در اثنای جريان محاکمه فوت نمود ، بنأ بر طلب خصم ديـگر ورثه متوفای مذکـور بمحکمه جلب ومحاکمه از نقطه توقف شروع و باتمام ميرساند . (۲)

**مادۀ ـ ۸۳** :

جريان دعوی وملحقات آن مطابق کتاب (۱۴) دعوی و(۱۵) بيانات مجلة الاحکام صورت ميگيرد .

**مادۀ ـ ۸۴** :

هرگاه مدعی برای اثبات مدعای خود مهلت بخواهد محکمه باندازهء لازمـه برايش مهلت ميدهد . (۳)

**مادۀ ـ ۸۵** :

هرگاه متعلق به دعوی مدعی يامدافعات مدعـی عليه در دوائـر رسمی اوراق و اسنادی موجود باشد که مراجعه به آن لازم باشد بغرض اسـتحصال آن مهلت داده ميشود . (٤)

(۱) : المادة (۵۸) مجلة الاحکام .
(۲) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۱ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (۶۷۳).والفتاوی الهندية جـ (۳) صـ (٤۳۹) .
(۳) : مطلب في فعل القاضي ردالمحتار رشيدية جـ (۴) صـ (۳۸۳) . و دررالحکام شرح المادة (۱۸۲۸) جـ (۴) صـ (٦٦٤) .
(۴) : ردالمحتار مطلب في فعل القاضي , جـ (۴) صـ (۳۸۳) . و دررالحکام شرح المادة (۱۸۲۸) جـ (۴) صـ (٦٦٤)

**۸۶ ـ ماده :**

په دې حال کې چې د (**۸۵**) مادې د ذکر شوي پاڼوپه لاس راوړل دجګړه کونکو په قدرت کې نه وي په دې صورت کې محکمه هغه رسما را غواړي . (۱)

**۸۷ ـ ماده :**

هغه پاڼې او اسناد چې ددعوی داثبات په غرض محکمې ته وړاندې کیږي په داسې حال کې چې مقابل طرف له هغونه منکر وي نوموضوع د مجلة الاحکام د اقرار د (**۱۳**) کتاب ( څلورم ) باب او دمجلة الاحکام دبینات د (**۱۵**) کتاب د( دوهم ) باب له مخې فیصله کیږي .

**۸۸ ـ ماده :**

که هغه اسناد چې د محاکمې په جریان کې محکمې ته وړاندې کیږي جعلي څرګند شي برسیره په هغه چې دې سند ته اعتبار نه ورکول کیږي : محکمه د سند جعلي والی دهغه مربوط مقام ته ابلاغوي . (۲)

**مادۀ ـ ۸۶ :**

در حالیکه استحصال اوراق متذکره ماده (**۸۵**) در قدرت خصمین نباشد در آن صورت محکمه آنها را رسمًا میخواهد . (۱)

**مادۀ ـ ۸۷ :**

اوراق واسنادی که بغرض اثبات دعوی بمحکمه تقدیم میشود درحالیکه طرف مقابل از آن منکر باشد موضوع برحسب باب چهارم کتاب(**۱۳**)اقرار مجلة الاحکام وباب (دوم) کتاب (**۱۵**) بینات مجلة الاحکام فیصله میشود .

**مادۀ ـ ۸۸ :**

هرگاه اسنادیکه در جریان محاکمه به محکمه تقدیم میشود جعلی ظاهرشود ، برعلاوه از آن که سندمذکور مداراعتبار قرارداده نمیشود محکمه موضوع جعلی بودن سند را به مقام مربوطۀ آن ابلاغ میدارد . (۲)

(**۱**) :المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(**۲**) : شرح المادة (۱۷۳۸) الاتاسي جـ (۵) صـ (۳۸۷). الموسوعة الفقيهة الكويتية جـ (۱۱) صـ (۲۶۳) .

**۸۹ ــ ماده :**

د پیښنې دعواوي چې د دعوی د جریان په ترڅ کې د مدعي یا مدعي علیه له خوا وړاندي کیږي محکمه هغه داصلي دعوی په منځ کې فیصله کوي . (۱)

**۹۰ــ ماده :**

داصلو دعوو مقدماتي مراتب لکه نوی عرض حال او دخــصم تبلیغ دپیښنـــې په دعوو کې ضرورت نه لري . (۲)

**۹۱ ــ ماده :**

په کړکیچنو دعوو کې چې محاسبې او ددفترو دپاڼو په کتلو پوري اړه ولري اویا له بلې لارې په هغو کې اشکال موجود وي، چــې دتحقیق موجب شــي محکمه کولای شي چې یو هیئت یا دمحکمې یو غړئ یا پوهـ کسان هغــې موضوع ته مؤظف کړي چــې دخپلو کتنو نتیجه محکمې ته وړاندي کړي . (۳)

**۹۲ــ ماده :**

محکمه د (۹۱) مادې د کسانو دکتنــې نتیجه دطرفــینو په حضورکــې لولــې موضوع وروسته دطرفینو له اوریدو او د اظهاراتو له تدقیق د ا یجاب له مخې فیصله کوي . (۴)

**مادۀ ــ ۸۹ :**

دعوی حادثه که در اثنای جریان دعوی از طرف مدعــی یا مدعــی علیه تقدیم مــیشود محکمه آنــرا در خلال دعوی اصلی فیصله میدارد . (۱)

**مادۀ ــ ۹۰:**

مراتب مقدماتی دعوی اصلیه مانند عرض حال جــدیــد وتــبلیغ خصم در دعاوی حادثه ضرورت ندارد . (۲)

**مادۀ ــ ۹۱ :**

دردعاوی پیچیده که برویت محاسبه ومعاینه دفاتر واوراق ارتباط داشــته باشد و یا از ناحیه دیگری در آن اشکال موجود باشد که موجب تحقیق گــردد ، محکمه میتواند یک هیئت یا یک عضو ویا اهل خبره را به آن موضوع مؤظف نماید که نتیجه ملاحظات خود را به محکمه تقدیم نمایند . (۳)

**مادۀ ۹۲ :**

محکمه نتیجۀ ملاحظات اشخاص مادۀ (۹۱) را بحضور طرفین قــرائت نموده موضوع را بعد از اســتماع وتــدقیق اظهارات طرفین حسب ایجاب فیصله مینماید . (۴)

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(۲) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(۳) : الْمَادَّةُ (۱٦۱۰) مجلة الاحکام . المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(۴) : الْمَادَّةُ (۱٦۱۰) مجلة الاحکام . المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

**۹۳ ـ ماده** : محكمه په هغو معاملاتو كې چې ددواړوخواؤ رغبت اصلاح ته احساس كړي د صلح (۱۲) كتـاب او دمجلة الاحكام د قضا او بينات د(۱۶) كتاب له مقرراتوسره سم دواړي خواوي د مصلحينـو په ټاكلو توصيه كوي .(۱)

**۹۴ـ ماده** :
په دې صورت كې چې طرفين په اصلاح موافقت ونكـړي محكمه موضوع تـر دوران لاندي نيسي فيصله كولی شي.(۲)

**۹۵ ـ ماده** :
څه وخت چـې طرفين اصلاح ته راضي شول پخپلو منځو كې يې اصلاح وكړه نو د دوی په منځ كې شرعي اصلاح خط ليكل كيږي او موضوع خاتمه مومي. (۳)

**۹۶ ـ ماده** :
مدعي يا مدعي عليه كولای شي د يوه له راتلونكو اسبابو د وجود په حال كې د محكمې له غړيو څخه د يوه غړي ، عدم حضور وغواړي .
**الف** : ـ دا چـې د يـيښـي ددعوی مالي منافع همغه غړي ته عايدوي .
**ب** : ـ هغه غړئ چې د يوه طرف له =

**مادهٔ ـ ۹۳** :
محكمه در معاملاتی كه رغبت طرفين را با صلاح احساس نمايد طبق مقررات كتاب (۱۲) صلح وكتاب (۱۷) قضاء و بينات مجلة الاحكام طرفين رابه تعين مصلحين توصيه ميدارد . (۱)

**مادهٔ ۹۴** :
در صورتيكه طرفين باصلاح موافقت نكنند محكمه موضوع را تحت دوران گرفته فيصله ميكند . (۲)

**مادهٔ ۹۵** :
وقتيكه طرفين به اصلاح راضی گشته در بين خودشان اصلاح نمودند ، اصلاح خط شرعی در بين شان تحرير و موضوع شان انجام ميگردد. (۳)

**مادهٔ ـ ۹۶** :
مدعی و يا مدعی عليه ميتواند در حال وجود يكی از اسباب آتی عدم حضور يكی از اعضای محكمه را خواهش نمايد .
**الف** : اينكه منافع مالی دعوی واقعه بهمان عضو عائد باشد .
**ب**: ان عضوی محكمه كه ازاقارب يكی

(۱) : اَلْمَادَّةُ ( ۱۸۲٦ ) مجلة الاحكام .
(۲) : شرح اَلْمَادَّةُ ( ۱۸۲٦ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٥٨) .
(۳) : شرح اَلْمَادَّةُ ( ۱۸۲٦ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٥٨) .

خپلوانو څخه وي . (۱)

**تبصره** : پلار، نيكه ، اولاد ، احفاد ،خاله ، ماما ، ترور، تره ، خسر او دخسرپلار دخپلوانو په جمله کې محسوب دي (۲)

**ج** : دمحكمې دغړي اويوه طرف په منځ کې شخصي عداوت موجود وي . (۳)

**د** :ـ د محكمې د غړي او يوه طرف په منځ کې دعوى موجوده وي . (۴)

**۹۷ ـ ماده** :

دمحكمې دغړي په خصوص کې دمدعي يامدعي عليه دهغه دعدم حضورغوښتنه ترتحقيق لاندي نيوله کيږي . دصحت په حال کې هغه ته اعتبار ورکول کيږي اوكه صحت يې نه درلود نوپخپله غوښتونكى تر مجازات لاندي راځي . (۵)

**۹۸ ـ ماده** :

كه په يوه محكمه کې ديوې دعوى په دائــرولو كـې غلبه او د اختلال احتمال موجودوي دهغې دعوى انتقال بلي محكمې ته كيداى شي . (۶)

**تبصره** : بلي محكمې ته د دعوى انتقال د تميز عالي مقام په واک کې دى . (۷)

(۱) :شرح المادة (۱۸۰۸) الاتاسي جــ (۶) صـــ (۷۹).

(۲) : الْمَادَّةُ – ( ۱۷۰۰ ) مجلة الاحكام .

(۳) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۷۹٤ ) دررالحكام جــ (۴) صـــ (۵۸۴) الفتاوي الكاملية صـــ (۱۰٦) .

=از خصمين باشد . (۱)

**تبصره**: پدر و پدركلان اولاد، احفاد، خاله ، خال (ماما )،عمه ، عم، خسر در جمله اقارب محسوب است . (۲)

**ج** : دربين عضومحكمه ويكى ازطرفين عداوت شخصى موجود باشد . (۳)

**د**:در بين عضو محكمه و يكى ازطرفين دعوى موجود باشد . (۴)

**مادۀ ۹۷**:

خواهش مدعى يا مدعى عليه مبنى بر عدم حضور عضو محكمه تحت تحقيق گرفته مـيشود ودرحـال صحت بـا آن ترتيب اثـر داده مـــيشود ودر صورت عدم صحت خود خواهش كـننده تحت مجازات مى آيد . (۵)

**مادۀ ۹۸**:

هرگاه در رويت دعوى در يک محكمه غلبه واحـتمال اخـتلال موجود باشـد انـتقال دعوى مذكور بـديگر محكمه شده ميتواند . (۶)

**تبصره** : انتقال دعوى به محكمه ديگر دراختيار مقام عالى تميز است. (۷)

(۴) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۹) مجلة الاحكام .

(۵) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(٦) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۷) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

**٩٩ ـ ماده :**
د ضبط كاتب مكلف دى چې دمحكمې په جريان كې لاندني مراتب په نظر كې ولري او تعميل يې كړي :
**الف** : ـ دمحكمې د رئيس او دغړيو نومونه په دې حال كې چې ترجمان وي د ترجمان نوم او دمتداعيينو تقريرونه .
**ب** : دشاهدانو نومونه او دهغو شهرت مكمله.
**ج** : ـ دهغو اسنادو لنډيز چې طرفين يې ښكاره كوي .
**د** : ـ توقيفونه چې د محكمې له خوا اجراء كيږي .
**هـ** : ـ هغه قرارونه چې د محكمې له خوا نيول كيږي . (١)

**١٠٠ ـ ماده :**
كه محاكمه پاى ته ونه رسيږي بلي ورځې ته ټال شي د نورو ورځو معاملات دي هم د ( ٩٩ ) مادې په ترتيب ونيول شي دحكم د اساس په حيث دي له هغوڅخه كار واخيستل شي . (٢)

**١٠١ ـ ماده :**
د ( ٩٩ )مادې اود (١٠٠) مادې پاڼي دي لكه نوري پاڼي ضبطي اود هرو دوو =

**مادهٔ ـ ٩٩ :**
كاتب ضبط مكلف است در جريان محاكمه مراتب آتی را در نظر گرفته تعميل نمايد :
**الف** : اسم رئيس واعضای محكمه در حاليكه ترجمان باشد نام ترجمان و تقارير متداعين .
**ب** : اسمای شهود و شهرت مكمله شان.
**ج** : خلاصهء اسنادی را كه طرفين ارائه ميدارند .
**د** : توقيفاتی كه از طرف محكمه اجراء ميشود .
**هـ** : قراری كه از طرف محكمه گرفته ميشود . (١)

**مادهٔ ١٠٠ :**
هرگاه محاكمه باتمام نرسيده وبروز ديگر معطل شود معاملات روز های ديگر نيز به ترتيب مادهٔ (٩٩) گرفته شده به حيث اساس حكم از آن كارگرفته ميشود . (٢)

**مادهٔ ـ ١٠١ :**
اوراق مادهٔ (٩٩) و مادهٔ (١٠٠) مانند سائر اوراق ضبط در اخير هر دو ماه =

(١) : الْمَادَّةُ ( ١٨١٤ ) مجلة الاحكام .شرح الْمَادَّةُ ( ١٨١٤ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٢١) .شرح الْمَادَّةُ ( ١٨١٦ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٢٦) .المادة (١٨٠١) مجلة الاحكام .
(٢) : الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) و (١٨١٤) مجلة الاحكام .

= میاشتو پای کې دي د دفترپه صورت مجلدي او حفظې ته وسپارلي شي . (١)

**تبصره** :

له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**١٠٢ ـ ماده** :

کله چې ددعوی تحقیق اوتدقیق د کفایت درجې ته ورسیده نو د محکمې رئیس دا لاندي مراتب اجرآء کوي :

**الف** : له دواړوخواووڅخه پوښتني کوی چې نور کوم شی لرئ کنه ؟ .

**ب** : وروسته له هغه چې طرفینو ځواب ورکړ چې د ویلو دپاره کوم نور شی نلري ، نو هغه وخت دوی پوهـ کوي چې محاکمه پای ته ورسیده .

**ج** : وروسته له هغه چې دمحاکمې په ختم پوهـ شول نو دواړه طرفه حق نلري چې څه ووایې . (٢)

**١٠٣ ـ ماده** :.

په دې صورت کې چې دواړه طرفــه اعتراضونه ولري هغه په ځانګړي پاڼه کې دمحکمې رئیس ته وړاندي کوي . (٣)

***

= بصورت دفتر مجلد بحفظیه ســپرده مــیشود . (١)

**تبصره** :

حالات اضطراری از حکم ماده فوق مستثنی است.

**مادۀ ـ ١٠٢** :

هرگاه تحقیق وتدقیق دعوی به درجۀ کفایت رسید رئیس محکمه مراتب آتی را اجرأ میدارد :

**الف**: از طرفــین می پرسد که دیگر چــیز گفتنی دارند یا نه ؟

**ب**: بعد ازینکه طرفین جواب دادند که چیزی دیگر برای گفتن ندارند در آن وقت محکمه اختتام محاکمه را باوشان تفهیم میدارد .

**ج**: بعد از افهام اختتام محاکمه طرفین حق ندارند چیزی بگویند . (٢)

**مادۀ ـ ١٠٣** :

در صورتیکه طرفین اعتراضاتی داشته باشند آنرا بداخل ورق علیحده به رئیس محکمه تقدیم میدارند . (٣)

***

(**١**) : الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) و (١٨١٤) مجلة الاحکام .

(**٢**) : الْمَادَّةُ ( ١٨٢٧ ) مجلة الاحکام .الْمَادَّةُ ( ١٨١٦ ) مجلة الاحکام .الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) مجلة الاحکام .

(**٣**) : شرح الْمَادَّةُ (١٨٣٩) دررالحکام جــ (٤) صــ (٦٩١).

**۱۰۴ ـ ماده :**

د اعتراض خبري اتري دخبرواترودجريان په ترڅ کې لوستلی کیږي په تحقیق کې د ژوري کتني داحساس په حال کې د محکمې رئيس محاکمه افـتتاح کوي لازمـه تحـقيقات اوتدقيقات پای ته رسوي وروسته د لازمو تحقیقاتو له تمامیدو څخه دمحاکمې پای ته رسیدل اعلاموي . (۱)

**۱۰۵ ـ ماده :**

دهري محکمې اداره له لاندنيو تشريحاتو سره سم دا راتلونکي دفترونه لري :

**الف : د استدعا دفتر** ( **وارده ـ صادره** ) .

**۱۰۶ ـ ماده :**

د استدعا دفتر دا لاندي مراتب لري :

**۱**: ـ ګڼه .

**۲**: ـ د عريضې نيټه .

**۳** : ـ د جګړه کونکو نومونه .

**۴** : ـ د جګړه کونکو شهرت اوتابعيت او د استوګنې محل .

**۵** : ـ د دعوی ماهيت .

**۶** : ـ د عريضې د راتګ نيټه .

**ب : ـ د جلب دفتر** .

**۱۰۷ ـ ماده :**

د عدليې محکمو دجلب دفـتر لاندنـي مطلبونه لري :

**مادۀ ـ ۱۰۴ :**

مـذاکره اعتراض در اثنای جـريان مذاکره قرائت شده در حـال احـساس لـزوم تعمق در تحقيق رئـيس محکمه بافتتاح محاکمه پرداخـته تحقيقات وتدقيقات لازمه رابه پايان ميرسانـد وبعد ازاتمام تحقيقات لازمه اختتام محاکمه را اعلام ميدارد . (۱)

**مادۀ : ۱۰۵ :**

ادارۀ هر محکمه مطابق تشريحات آتی دارای دفاتر ذيل ميباشد :

**الف : دفتر استدعا** ( **وارده = صادره** )

**مادۀ : ۱۰۶ :**

دفتراستدعا حاوی مراتب ذيل ميباشد :

**۱**- شماره .

**۲**- تاريخ عريضه .

**۳**- اسم متخاصمين .

**۴**- شهرت وتابيعت ومحل اقامت متخاصمين .

**۵**- ماهيت دعوی .

**۶**- تاريخ ورود عريضه .

**ب : دفتر جلب**

**مادۀ ۱۰۷ :**

دفتر جلب محاکم عدلی حاوی مطالب آتی است :

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ) مجلة الاحكام .الْمَادَّةُ ( ۱۸۲۷ ) مجلة الاحكام .

۱ :ـ د جلب د پاڼي نيټه .
۲ :ـ د جلب د پاڼي د تسلمېدونكي نوم .
۳ : د ځگړه كوونكو د حاضرولو ورځ ټاكل .
۴ :ـ د دعوى لنډيز .

**ج :ـ د اسنادو دفتر .**

**۱۰۸ـ ماده :**

د متخاصمينو دفتر چې په عدليه محكموكې پراته وي لاندني تو ضيحات لري :

۱ :ـ د متخاصمينو د اسنادو ډول .
۲ :ـ د اسنادو دمندرجاتو لنډيز .
۳ :ـ د اسنادو د پاڼو شمير .

**۱۰۹ ـ ماده :**

دهري موضوع د اسنادو د دفتر د مندرجاتو په تفصيل كې د محكمې د رئيس مهر او لاسليک ضروري دی .

**د :ـ د فيصله جاتو دفتر .**

**۱۱۰ـ ماده :**

د محكمې د وثائقو او فيصله جاتو دفتر دهغو فيصلو ثبت دی چې د محكمې او غړيو په لاسليک رسولی كيږي .

**هـ : د اعلاماتو د ثبت دفتر .**

**۱۱۱ ـ ماده :**

د اعـــلاناتو د ثبت په دفتر كې ټولـــي هغه فيصلې چې له محكمې څخه صادري او متخاصمينو ته سپارلي كيږي ثبتيږي .

۱- تاريخ ورقهٔ جلب .
۲- اسم تسليم شوندهٔ ورقه جلب .
۳- تعين روز احضار متخاصمين .
۴- خلاصهٔ دعوی .

**ج : دفتر اسناد**

**مادهٔ ۱۰۸ :**

دفتر اسناد متخاصمين كه بمحاكم عدليه وجود ميداشته باشد مشتمل توضيحات ذيل است :

۱- نوعيت اسناد متخاصمين .
۲- خلاصهٔ مندرجات اسناد .
۳- تعداد اوراق اسناد .

**مادهٔ ۱۰۹ :**

در تفصيل مندرجات دفتر اسناد هر موضوع مهر و امضای رئيس محكمه ضروری است .

**د : دفتر فيصله جات**

**مادهٔ ۱۱۰ :**

دفاتر وثايق و فيصله جات محكمه حاوی ثبت فيصله است كه با امضای رئيس و اعضای محكمه رسانيده ميشود .

**هـ : دفتر ثبت اعلامات**

**مادهٔ ۱۱۱ :**

در دفتر ثبت اعلامت تمام فيصله هائيكه از محكمه صادر و به متخاصمين سپرده ميشود ثبت ميگردند .

**۱۱۲ ـ ماده :**

داعــلاماتو دفترلرونکی مکلف دی چې دمحکمې دفــیصلې یونقل متخاصمینو ته وسپاري دا دفترلاندني توضیحات لري :

۱ : د مدعي اومدعي علیه نوم .

۲ :ـ ددعوی لنډیز .

۳ : د محکمې د جریان صورت .

۴:ـ د حکم نتیجه .

**۱۱۳ ـ ماده :**

که چیري د محکمې د فیصلې نقل له یوه خصم څخه ورک شي د اعلاماتو د دفترلرونکی مکلف دی چې دهغه نوی نقل د غوښتنې له مخې ورکړي .

**و : دمحکمې دوارداتو دفتر :**

**۱۱۴ ـ ماده :**

د محکمې ټول دفــترونه په مجلدي صورت چې اول او آخیر دصفحې په قید دمحکمې د رئیس په مهر رسیدلی وي ترتیب ورکول کیږي .

**۱۱۵ ـ ماده :**

دمحکمې رئیس مؤظف دی چې په هره میاشت کې د خپلــې مربوطي محکمې ټول دفترونه وګوري اوخصوصي تفتیش یې وکړي ترڅو دمحکمې ددفتري چارو له مؤظفینو څخه کوم نقص اوخطا پېښه نشي .

**مادهٔ : ۱۱۲ :**

دفتردار،اعلامات مکلف است که یک نقل فیصله محکمه را به متخاصمین بسپارد ، این دفتر مشتمل به توضیحات آتی است :

۱- اسم مدعی ومدعی علیه .

۲- خلاصه دعوی.

۳-صورت جریان محکمه .

۴- نتیجه محکمه .

**مادهٔ : ۱۱۳ :**

هر گاه نقل فیصله محکمه از نزد یکی از متخا صمین مفقود شــود دفــتردار اعلامات مکلف است که نقل آنرا در صورت مطالبه مجدداً به او بدهد .

**و : دفتر واردات محکمه**

**مادهٔ ۱۱۴:**

تمـام دفـاتر محکمـه بصـورت مجلـد کـه اول و آخرآن بقید صـفحه بامضـاء ومهـر رئـیس محکمــه رســیده باشــد ترتــیب داده میشود .

**مادهٔ ۱۱۵ :**

رئـیس محکمــه مؤظـف اسـت کــه در هرمـاه تمـام دفـاتر محکمــه مربوطــه را ملاحظــه وتفتــیش خصوصــی کنــدتا تخطـی ونقصـی از نزدمـوظفین اموردفترمحکمه بوقوع نــرســد .

**۱۱۶ ـ ماده :**

د عدليه محکمو ددفترو په مندرجاتو کې کومه خدشه اوتغير کيدای نشي که د کومي کلمې زياتولو يا کمولو يا بېخې ايستلو ته کوم ضرورت پېښ شي په واضح ډول ئي باسي دا ايستل د محکمې ددفتردآمراومحکمې درئيس په لاسليک رسول کيږي . (۱)

**تبصره** : له( **۱۰۵** تر **۱۱۶**)پورتنيو موادو څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

## څلورم فصل

## د لومړنيو محکمو مراجعات

**۱۱۷ ـ ماده :**

يوه دعوی په يوه وخت کې په دوو محکمو کې دائرېدای نشي . (۲)

**۱۱۸ ـ ماده :**

که په محکمه کې ددعوی داساسي دوران په ترڅ کې يوله متخاصمينو څخه داصل دعوی دائريدل په بله محکمه کې ښکاره کړي يا ددعوی ارتباط په بلې هغسي =

**مادۀ ۱۱۶ :**

تغير و خدشه در مندرجات دفاتر محاکم عدليه صورت گرفته نميتواند. هرگاه به کشيدگی وايزاد يا اخراج کدام کلمه ضرورت محسوس شود بصورت واضح کشيده واين کشيدگی بامضاء آمر دفتر محکمه ورئيس محکمه رسانيده ميشود . (۱)

**تبصره** : حالات اضطراري ازحکم ماد های ( **۱۰۵**) تا ( **۱۱۶**) فوق مستثنی است .

## فصل چهارم

## مراجعات محاکم ابتدائيه

**مادۀ : ۱۱۷ :**

دعوی واحده در يک وقت بدو محکمه دائر شده نميتواند . (۲)

**مادۀ : ۱۱۸ :**

هرگاه دراثنای دوران اساسی دعوی در محکمه ، يکی از مخاصمين دآئر بودن اصل دعوی رادرمحکمه ديگری وانمود ساخته يا ارتباط دعوی رابدعوی ديگری =

(۱) د(**۱۰۵**) مادې څخه بياتر (**۱۱۶**) مادې پوري دمجلة الاحكام پر (۱۸۰۰) (۱۸۰۱) او (۱۸۱٤) اوشرح دررالحكام جــ (٤) صــ (٦٢١) مادې باندي مبني دي . الموسوعة الكويتية جــ (۳۳) صــ (۳۰۳) .

(**۲**) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .

=دعوی پوري چې هغه په بله محکمه کې دوران لري بيان کړي ،نوددې دعوی انتقال هغې محکمې ته وغواړي په دې صورت کې د قانوني صلاحيت په شرط همغې لومړۍ محکمې ته د دعوی په انتقال امر ورکول کيږي . (۱)

**۱۱۹ـ ماده :**

هغه اعتراضونه چې يو له متخاصمينو څخه يې دطرفينو داسنادواوپاڼوپه خصوص کې ولري بايدپخوا دمحاکمې له ختم څخه له محکمې سره و غږيږي البته مطلوبه اعتراضات وروسته له فيصلې څخه په همغه محکمه کې د اوريدو وړ نه بلل کيږي . (۲)

**۱۲۰ـ ماده :**

وروسته ددعوی دمراتبو له طی کولو او دمحکمې د حکم د اصدار درجې ته له رسيدو دطرفينو د ذات تبدل يا دصفاتو تبدل د محکمې دحکم د صدور او تبليغ مانع نه گرځي .

**تبصره**: مقصد دذات له تبديل څخه فوت دی او مراد د صفاتو له تبديل څخه د ليونتوب اوافلاس پيښيدل دي . (۳)

=که در محکمه ديگری دوران دارد بيان کرده انتقال دعوی را بهمان محکمه مطالبه نمايد در اين صورت بشرط صلاحيت قانونی با انتقال وحوالۀ دعوی بهمان محکمه اول امر داده ميشود . (۱)

**مادۀ ۱۱۹ :**

اعتراضاتيکه يکی از متخاصمين راجع به اسناد واوراق طرفين داشته باشند بايد قبل از ختم محاکمه بمحکمه تذکر بدهند البته اعتراضات مطلوبه بعد از فيصله در همان محکمه قابل سمع گفته نيست. (۲)

**مادۀ ۱۲۰ :**

بعد از طی مراتب دعوی ورسيدن بدرجۀ اصدار حکم محکمه تبديل ذات يا تبديل صفات طرفين مانع صدور و تبليغ حکم محکمه نميشود .

**تبصره**: مقصد از تبديل ذات فوت ومراد از تبديل صفات حدوث جنون وافلاس است . (۳)

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .

(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .

(۳) الفتاوي القاضي خان علي هامش الهندية جـ (۲) صـ (۳٦۷) .

**۱۲۱ ـ ماده :**

د متخاصمينو په منځ کې د دعوی د دوران په ترڅ کې که کوم بل شخص داسي عرض چې محکمې ته راجع شوې دعوی کې دده د مداخلې په حق او صلاحيت مبني وي وړاندې کړي او دمحکمې په غرض خپل حضور وغواړي دده غوښتنه منله کيږي مګر په دې صورت کې چې د حکم اصولي مراحل پای ته رسيدلي وي دمحکمې د حکم اعلام ددې غوښتنې په اثر ټاليدای نشي . (۱)

**۱۲۲ ـ ماده :**

هغه کسان چې محکمې ته يې استدعا وړاندې کړې وي او تر دوو مياشتو پوري دخپلې وړاندې کړې دعوی په خصوص کې محکمې ته حاضر نشي نو دا استدعا يې باطله ګڼله کيږي او د دوی دعوی بې له نوې دعوی وړاندې کولو د اوريدو وړ نه بلله کيږي . (۲)

***

*

**مادهٔ ۱۲۱ :**

در اثنای دوران دعوی بين متخاصمين هرگاه شخص ديگری عرضی مبنی به حق وصلاحيت مداخله خود در دعوی راجعه بمحکمه تقديم سند حضور خود را بغرض محکمه مطالبه نمايد مطالبه او پذيرفته می شود اما در صورتيکه مراحل اصولی حکم بپايان رسيده باشد اعلام حکم محکمه با ثر اين مطالبه به تعويق افگنده نميشود .(۱)

**مادهٔ ـ ۱۲۲ :**

اشخاصيکه بمحکمه استدعائی تقديم کرده تا مدت دوماه بمحکمه راجع به استدعای تقديم داشته خود حاضر نشوند استدعای شان باطل پنداشته می شود ودعوی شان بدون تقديم استدعای جديد قابل سمع گفته نميشود . (۲)

***

*

(۱) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۲۸ ) مجلة الاحکام .

(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحکام .

## پنځم فصل
## د حکم اسباب

**۱۲۳ ـ ماده :**
د حکم اسباب څلور شیان دي :
**الف** : اقرار .
**ب** : شاهدان ( بینه ) .
**ج** : حلف .
**د** : نکول . (۱)

## ـ الْإِقْـــــــرَارِ ـ

**۱۲۴ ـ ماده :**
داقرارمباحث اودهغواحکام د مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ له (۱۵۷۲) مادې بیا تر (۱۶۱۲) مادې پورې د اجراء وړدي ، دحکم څلور واړه اسباب د دعوی د دوران په وخت کې دا ډول اثباتیږي :

**۱۲۵ ـ ماده :**
د صحیحه دعوی له اقامـه کولو څخه وروسـته محکمه دا لاندې مراتب په ځای کوي :
**الف** : ـ له مدعي علیه څخه د مدعي د دعوی ځواب غواړي . (۲)

## فصل پنجم
## اسباب حکم

**مادهٔ ۱۲۳ :**
اسباب حکم چهار چیز است:
**الف** : اقرار .
**ب**: شاهدان ( بینه )
**ج** : حلف .
**د** : نکول . (۱)

## ـ الْإِقْـــــــرَارِ ـ

**مادهٔ : ۱۲۴ :**
مباحث اقرار واحکام آن مطابق مادهء (۱۵۷۲) الی (۱۶۱۲) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ الْعَدْلِيَّةِ مرعی الاجراء است اسباب چهار گانه حکم وقت دوران دعوی چـــنین اثبات وجود می نماید :

**مادهٔ : ۱۲۵ :**
بعد از اقامه دعوی صحیحه محکمه بمراتب آتی می پردازد :

**الف** : از مدعـــی علیه جواب دعوای مدعی را میخواهد . (۲)

(۱) : شرح المادة (۱۸۲۷) الاتاسی جـ (۶) صـ (۱۲۹) ودررالحکام جـ (۴) صـ (۶۶۲) .
(۲) : شرح المادة (۱۸۱٦) دررالحکام جـ (٤) صـ (۶۲۶) .

**۲۰۰ ـ ماده :**

مرافعي محکمې نـشي کولای چې په مسـتقیم ډول بـې دمربوطي ابـتدا ئي محکمې له ړومبې فیصلې دعوی حل او فصل کړي . (۱)

**تبصره** : په فعلي شرائطوکې دهري مرافعـې په څنگ کې یوه عامه ابتدائیه لازمي ده، چې د ضرورت په وخت کـې په اصولـي توگه دابتدائیې مراحل تراجرآء لاندي ونیسي . (۲)

**۲۰۱ ـ ماده :**

که مرافعه محکمه دمتخاصمینو دتقاضا په اثـر یا مستقیما د نورو داسي کسانو احضارته چې دعوی یې له مدعي سره په ابتدا ئیه محکمه کې فیصله شوې نه وي ، ضرورت ووینـي او ( مرافعه ئې ) مدعـي علیه حس کـړي ، په ابـتدا ئیه محکمه کې د دعوی د اعادې او د حکم د فسخ امرورکوي . (۳)

**۲۰۲ ـ ماده :**

مدعي اومدعي علیه هغې ابتدا ئې محکمې ته چې دقضیې دحل اوفصل واک لري داسي رسمي سند ورکړی وي چې مرافعه نه غواړي ددوی داستیناف حق ساقط بلل کیږي . (٤)

**مادۀ ۲۰۰:**

محاکم مرافعه نمی توانند که بصورت مسـتقیم بدون فیصلۀ قبلـی محکمۀ ابتدائیه مربوطه به حل وفصل دعاوی بپردازند . (۱)

**تبصره**: نظر به شرائط فعلي درپهلوئي هرمرافعه یک محکمه ابتدائیه عام لازم است ، که دروقت ضرورت بطور اصولي مراحل ابتدائي رااجراء نماید . (۲)

**مادۀ ۲۰۱ :**

هرگاه محکمۀ مرافعه در اثر تقاضای متخاصمین یا مستقیمًا ضرورت به احضار اشخاص دیگری ،که دعوی شـان بـا مدعی درمحکمۀ ابتدائیه فیصله نشده باشد و ( مرافعه اورا ) مدعی علیه حس کـند به فسـخ حکم واعادۀ دعوی در محکمۀ ابتدائیه امر میدهد . (۳)

**مادۀ ۲۰۲ :**

مدعی ومدعی علیه درصورتیکه بمحکمۀ ابتدائیه که صلاحیت حل فصل قضیه را داشته است سند رسمی مبنی به عدم مطالبـه مرافعه داده باشنـد حق استیناف شان ساقط گفته میشود . (۴)

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة .

(۲) : المادة (۱۸۰۱) مجلة .

(۳) : المادة (۱۸۰۱) و (۱۸۳۸) مَجَلَّةُ الْأَحْكَام .

(۴) : الْمَادَّةُ (۷۹ ـــ ۱۶۰۶ ـــ ۱۶۰۷)مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

**۲۰۳ ـ ماده :**

د ابتدا ئي محكمو صادره احكام چې د مدعى بها نـقدي اندازه يې ټاكل شوې نه وي ، يا يـې قيمت امكان ونه لري ، يا جګړه كوونكو هغه نه وي ټاكلـی د استيناف وړده .(۱)

**۲۰۴ـ ماده :**

هغه دعوى ګاني چې مدعى به يې معلوم قـيمت ونـلري لكه دحـدودو ټـاكل او نور فواصل د استيناف وړوي .(۲)

**۲۰۵ ـ ماده :**

كه چيري دعوى مختلف جهتونه ولري د اسـتيناف د پاره دهغې د يوه جـهت جـلا كول بـې دمرافعې له حكم څخـه پرهغو ټولوباندي كيداى نشي .(۳)

**۲۰۶ ـ ماده :**

هغه احكام اوقرارونه چې ددعوى دشته والي يا نه شته والي په خصوص كې د ابــتدا ئي محكمې له خوا دهغــې له صلاحيته صادر شوې وي د اسـتيناف وړدي .(۴)

**مادۀ ۲۰۳ :**

احـكام صـادرۀ محاكم ابـتدائيه كه مقـدار نقـدی آن معـين نـشده باشـد يا تـعيين قـيمت آن امكان نـداشـــته يا متنازعين آنرا تعيين نه نموده باشند قابل استيناف می باشند . (۱)

**مادۀ ۲۰۴ :**

دعوی هـائيكه مدعــی به قـيمت معلوم نميداشــته باشد از قبيل تعــين حدود وفواصل ديگر، قـابل استيناف ميباشند . (۲)

**مادۀ ۲۰۵ :**

هرگاه دعوی دارای جهات مختلفه باشد جدا ساختن يک جهت آن برای استيناف بـدون حكم مرافعه بالای مجموع آنها صورت گرفته نميتواند . (۳)

**مادۀ ۲۰۶ :**

احكام وقرار هائيكه از طرف محكمۀ ابتدائيه راجع به بودن يا نابودن دعوی از صلاحيت آن صادر شـده باشـد قابل استيناف می باشند . (۴)

(۱) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۲) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۳) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۴) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

**۲۰۷ ـ ماده :**

كه ديـوې موضوع فـيصله د قانونـي صلاحـيت له مخي له يـوې ابتدا ئـي محكمې څخه بلي ابتدا ئي محكمې ته انتقال وركړى شوى وي دهغې دمرافعې د غوښتني استدعا دمربوط ولايت په هغه مرافعه كې قبليږي . (۱)

**۲۰۸ ـ ماده :**

هغه قرارونه چي ددعوى دميعاد دتېرېدو يا نه تېرېدوپه خصوص كې وركول كيږي د استيناف وړدي . (۲)

**۲۰۹ ـ ماده :**

د نه قناعت په حال كي ددعوى استيناف دمدعي ، مدعي عليه اوددوى دحقوقي قائم مقاماتو له خوا لكه ورثه ، وصيان ، ماذون وكيلان په استيناف ، د شركت مدير ، د امارت داداري مامور، مدعي العموم صورت نيولى شي . (۳)

**۲۱۰ ـ ماده :**

د اسـتيناف د ټاكلي مودې له تېرېدو څخه وروسته ددواړو خواؤ داستيناف حق ساقطيږي . (۴) =

**مادهٔ ۲۰۷ :**

هـرگاه فـيصلهٔ موضوعـی مطابق صلاحيت قانونی از يک محكمه ابتدائيه به محكمهٔ ابتدائيهٔ ديگری انتقال داده شده باشـد اسـتدعای مرافعه طلبی آن بـهمان محكمهٔ مرافعهٔ ولايت مربوطه پذيرفته ميشود . (۱)

**مادهٔ ۲۰۸ :**

قرارهائی كه راجع بانقضای مـيعاد دعاوی و يا عدم انقضای آن داده ميشود قابل استيناف است . (۲)

**مادهٔ ۲۰۹ :**

در حال عدم قناعت استيناف دعوی از طرف مدعی ومدعی عليه وقائم مقام های حقوقی شان از قبيل ورثه ، وصی ها ، ووكلای ماذون باسـتيناف ، مدير شـركت ، مامور ادارهٔ امارت ، مدعـی العموم ، صورت گرفته ميتواند . (۳)

**مادهٔ ۲۱۰ :**

بعدازانقضای ميعادمعينهٔ استيناف حق استيناف طرفين ساقط ميگردد (۴) =

---

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۲) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام . شرح المادة (۱۸۳۹) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩١) .

(۳) : الْمَادَّةُ (١٦١٨) مجلة الاحكام .دررالحكام جـ (٤) صـ (١٨٢) . شرح الْمَادَّةُ (١٨٣٠) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٦٨) .خلاصة البابين.دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٨٢) .شرح المادة (١٨١٦) الاتاسي جـ (٦) صـ (٩١) .

(۴) : شرح الْمَادَّةُ ( ١٨٣٩ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩١) .

= مگر په دې صورت کې چې په ټاکلې موده کې دخصمينو دقائم مقاماتوله خوا ددعوی استيناف عملي شوی نه وي . هغه کسان چې دوی ته ضرر رسيدلی وي په قائم مقاماتوباندې په ابتدائيه محکمه کې ددعوی اقامه کولوحق لري . (۱)

**۲۱۱ ـ ماده :**

د استيناف حق که څه هم د ميعاد په تېرېدو ساقطيږي ، مگر په دې صورت کې چې يوطرف استيناف کړی وي ، بل طرف هم ددې استيناف ددعوی دانقطاع اوانفصال تروخته پورې ددغه استيناف دغوښتنې صلاحيت لري ،که څه هم د استيناف ميعاد تېرشوی وي . (۲)

**۲۱۲ ـ ماده :**

ددعوی استيناف دهغې استدعا په وسيله کيږي چې مرافعې محکمې ته په مستقيم ډول وړاندې کيږي . (۳)

**۲۱۳ ـ ماده :**

د مرافعې غوښتنې د نېټې شروع د استدعا له وړاندې کيدواو په مرافعه محکمه کې دهغې له قيد څخه حسابيږي (٤)

= اما درصورتی که درظرف ميعاد معينه ازطرف قائم مقام های خصمين استيناف دعوی بعمل نيامده باشد اشخاصی که به ايشان ضرری رسيده باشد حق اقامهٔ دعوی را درمحکمهٔ ابتدائيه بالای قائم مقام ها دارند . (۱)

**مادهٔ ـ ۲۱۱ :**

حق استيناف اگرچه بانقضای ميعاد ساقط ميشود اما درصورتيکه يکی از طرفين استيناف نموده باشدطرف ديگر نيز تا زمان انقطاع وانفصال دعوی اين استيناف صلاحيت مطالبهٔ استيناف را دارد اگرچه ميعاد استيناف منقضی گرديده باشد . (۲)

**مادهٔ ـ ۲۱۲ :**

استيناف دعوی بوسيلهٔ استدعای صورت ميگيرد که بمحکمهٔ مرافعه مستقيمًا تقديم ميشود. (۳)

**مادهٔ ـ ۲۱۳ :**

ابتدای تاريخ مرافعه طلبی از تقديم استدعا وقيد آن به محکمهٔ مرافعه حساب ميشود . (۴)

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۲) : .المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مجلة الاحكام .

(۴) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

**٢١٤ ـ ماده :**

دمرافعې غوښتنې پاڼه چې مرافعې محکمې ته وړاندې کيږي بايد دا لاندې تفصيل ولري :

**الف**: دمرافعې غوښتونکي نوم او شهرت ، دده کسب او د استوګنې ځای .

**ب** :ـ د مقابل طرف نوم او شهرت ، دهغه کسب او د استوګنې ځای .(١)

**ج** :ـ د دعوی موضوع .(٢)

**د** :ـ د ابتدا ئيه محکمې دفيصلې احکام او دهغې قرار دمحکمې په نامه .

**هـ** :ـ دابتدائيه محکمې دحکم د صدور نيټه .

**و** :ـ مرافعه غوښتونکي شخص ته دحکم د ابلاغ نيټه .

**ز** : دمرافعې غوښتنې علل او اسباب .

**ح** :ـ د مقابل جانب يا دهغه د وکيل د احضار غوښتنه په قانوني ټاکلي ميعاد کې .(٣)

**٢١٥ ـ ماده :**

د مرافعې غوښتنې پاڼې چې د (٢١٤) مادې ذکر شوي شرائط ونه لري مستردېږي، په دې صورت کې که دمرافعه غوښتنې =

**مادهٔ : ٢١۴ :**

ورقهٔ مرافعه طلبی که بمحکمهٔ مرافعه تقديم ميشود بايد حاوی تفصيل آتی باشد :

**الف**- اسم وشهرت مرافعه طلب وپيشه ومحل اقامت او .

**ب**-اسم وشهرت طرف مقابل وپيشه ومحل اقامت او .(١)

**ج**- موضوع دعوی .(٢)

**د**- احکام فيصلهٔ محکمهٔ ابتدائيه وقرار آن بانام محکمه .

**هـ**- تاريخ صدور حکم محکمهٔ ابتدائيه .

**و**- تاريخ ابلاغ حکم شخص مرافعه طلب .

**ز**- علل واسباب مرافعه طلبی .

**ح**- مطالبهٔ احضار جانب مقابل يا وکيل آن درميعاد معينهٔ قانونی .(٣)

**مادهٔ ٢١۵ :**

اوراقهٔ مرافعه طلبی که شرائط متذکرهٔ طبق مادهٔ (٢١۴) را نداشته باشد مسترد ميگردد درين صورت هرگاه مدت قانونی =

---

(١) : الْمَادَّةُ ( ١٦١٧ ) مجلة الاحكام .

(٢) : الْمَادَّةُ ( ١٨٠١ ) مجلة الاحكام .

(٣) : المادة (١٨٠١) مجلة الاحكام .

=غوښتني قانوني موده باقي وه نومرافعه غوښتونکی شخص دمرافعې د استدعا پاڼه نوي کولای او دهغې نواقص تکمیلولا ی شي . (۱)

**۲۱۶ ـ ماده :**

مرافعه غوښتونکی شخص مکلف دی چې د مرافعې د غوښتني د پاڼي له وړاندي کېدو څخه وروسته په موده دلسو ورځو کې دخپلي مرافعه غوښتني د دعوی صورت دپاڼي پرمخ ولیکي او محکمې ته یې وسپاري په دې پاڼه کې دمرافعه غوښتونکي شخصي اعتراضات او دده ادعا په تفصیل سره داخلېږي په (۲۱۴) مادې کي د استدعا د پاڼي په انضمام مرافعې محکمې ته وړاندي کیږي په دې پاڼه کې پخپله مرافعه طلب تقاضا کوي چې وروسته دمحکمې له تصدیق نه دده د مرافعې غوښتني صورت دده مقابل جانب ته ابلاغ شي او دمقابل جانب د احضار مخصوصه پاڼه چې دطرفینو د محاکمې د ټاکلي ورځي نیټه پکښې واضحه وي مقابل جانب ته ولیږله شي . (۲)

مرافعه طلبی باقی بود . شخص مرافعه طلب تجدید ورقهٔ استدعای مرافعه وتکمیل نواقص آنرا کرده میتواند . (۱)

**مادهٔ ۲۱۶ :**

شخص مرافعه طلب مکلف است که در ظرف (ده روز) بعداز تاریخ تقدیم ورقهٔ مرافعه طلبی صورت دعوی مرافعه طلبی خود رابروی ورقه نوشته بمحکمه بسپارد درین ورقه اعتراضات شخص مرافعه طلب وادعای اوبالتفصیل درج میشود به انضمام ورقهٔ استدعائیهٔ متذکرهٔ مادهٔ (۲۱۴) مرافعه طلبی بمحکمه مرافعه تقدیم میگردد درین ورقه شخص مرافعه طلب تقاضا میکند که بعدازتصدیق محکمه صورت مرافعه طلبی او بجانب مقابلش ابلاغ گردد وورقهٔ مخصوص احضار جانب مقابل که تاریخ روز معین محاکمهٔ طرفین در آن واضح باشد بجانب مقابل فرستاده شود . (۲)

***

*

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۲) : المادة (۱۸۰۱) و ( ۱۸۳۳ ) مجلة الاحكام . شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحكام جــ (٤) صــ (٦٩١) .

**تبصره** : له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**٢١٧ـ ماده** :

هرکله چې د مرافعې غوښتني صورت د (٢١٣) مادې په تفصيل د احضار له پاڼــي سره مقابل جانب ته ابــلاغ شو، مقابل جانب مکلف دی چې دمحاکمې له ټاکلي ورځې نه پخوا خپل عرض حال چې دمرافعه غوښــتونکي پرځوابونو مبني وي ترتيب کړي او محکمې ته يې وړاندي کړي .(١)

**٢١٨ ـ ماده** :

هريوله طرفينوڅخه مکلف دی چې دمحاکمې په ټاکلي ورځ پخپله محکمې ته حاضر شي يا خپل وکيل محکمې ته وليږي .(٢)

**٢١٩ ـ ماده** :

په دې مورد کې چې محکمه له شرعي مقرراتوسره سم په غياب کې حکم صادره وي، نومحکوم عليه شخص کولای شي چې له قانوني شرائطوسره سم دمحکمې پرحکم باندي اعتراض وکړي او تميز يې وغواړي .(٣)

**تبصره** : حالات اضطراري ازحکم ماده فوق مستثنی است .

**مادۀ ٢١٧** :

وقتيکه صورت مرافعه طلبی به تفصيل مادۀ (٢١٣) با ورقۀ احضاربجانب مقابل ابلاغ گرديد جانب مقابل مکلف است که قــبل از روز معينۀ محاکمه عرض حال خود را مبنی بجوابهای اعتراضات مــرافعه طلب تــرتــيب داده بــمحکمه تقديم کند . (١)

**مادۀ ٢١٨** :

هر کدام از طرفين مکلف ميباشند که شخصًا بروز معين محاکمه بمحکمه حاضر شونديا وکيل خود را بمحکمه بفرستند . (٢)

**مادۀ ٢١٩** :

درموردی که محکمه طبق مقررات شرعی « غياباً » حکم صادر مينمايد ، شــخص محکوم عليه ميتواند که مطابق شرايط قانونــی بالای حکم محکمه اعــتراض کرده، تميز را مطالبه کند . (٣)

(١) : المادة (١٨٠١) مجلة الاحكام . الْمَادَّةُ (١٨٤٠) مجلة الاحكام . وشرحها للاتاسی جـ (۶) صـــ (١۶٧) .

(٢) : شرح الْمَادَّةُ ( ١٦١٨ ) دررالحكام جــ (٤) صــ (١٨٢) . وشرح المادة (١٨١٦) التاسي جــ (۶) صــ (٩١) .خلاصة البابين :دررالحكام جــ (٤) صـــ (٦٨٢) .

(٣) :شرح الْمَادَّةُ (١٨٣٥) دررالحكام جــ (٤) صــ (٦٨١) الْمَادَّةُ (١٨٣٦) مجلة الاحكام . ودررالحكام جــ (٤) صــ (٦٨١) .

**٢٢٠ ـ ماده :**
که مرافعه غوښتونکي شخص دمرافعې غوښتنې په ټاکلي ميعادکې له خپلې دعوی څخه آوښتل په رسمي سندکې محکمې ته وړاندې کړي مرافعه محکمه دده مرافعه غوښتنې دحق د سقوط په خصوص کې يوحکم صادروي په دې صورت کې د ابتدا ئې محکمې حکم قطعي ګرځي . (١)

**مادهٔ ٢٢٠ :**
هرگاه شخص مرافعه طلب درظرف میعاد معینهٔ مرافعه طلبی انصراف از دعوی خود را بداخل سند رسمی به محکمه تقدیم کند محکمهٔ مرافعه قراری مبنی بسقوط حق مرافعه طلبی او صادر می کند دراین صورت حکم محکمهٔ ابتدائیه قطعی قرار می گیرد . (١)

**٢٢١ ـ ماده :**
ټول محاکماتي اصول اوقوانين چې په ابتدائيه محکمه کې مرعی الاجراء دي په مرافعه محکمه کې هم مرعی الاجراء دي. (٢)

**مادهٔ : ٢٢١:**
تمام اصول و قوانین محاکماتی که در محکمهٔ ابتدائیه مرعی الاجراء است در محکمهٔ مرافعه نیز مرعی میبا شند . (٢)

## د تمييز مبحث
## عمومي مواد

## مبحث تمییز
## مواد عمومی

**٢٢٢ ـ ماده :**
تميز هغه نهائي صلاحيت دی چې دتميز غوښتونکي دغوښتنې يا دقانون د صلاحيت له مخې دابتدائيې اومرافعې د فيصلو ( نقض اوابرام ) صحت او سقم څرګندوي . (٣)

**مادهٔ ـ ٢٢٢ :**
تمیز همان صلاحیت نهانی است که بنا براستدعای مستدعی تمیز و یا صلاحیت قانون (نقض و ابرام) صحت و سقم فیصله های ابتدائیه ومرافعه را ایضاح مینماید . (٣)

(١) : الْمَادَّةُ ( ١٦٠٦ ) و (٧٩ ) مجلة الاحكام .

(٢) : المادة (١٨٠١) مجلة الاحكام .

(٣) : الْمَادَّةُ(١٨٣٩) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .شرح الْمَادَّةُ ( ١٨٣٨ ) دررالحكام جــ (٤) صــ (٦٩٠) .

**۲۲۳ ـ ماده :**

تميز دخپلي اصولي صلاحيت په حوزه کې دابتدائيې اومرافعې ټول احکام ګوري اوتدقيق کوي . (۱)

**۲۲۴ ـ ماده :**

که دتميز دکتني او تدقيق په اثرڅرګنده شي چې د ابتدا ئيې اومرافعې محکمو يا ددوی ديوې حکم له مقرراتو سره سم شوی دی، د تميز دمحکمو له خوا تائيديږي . (۲)

**۲۲۵ ـ ماده :**

په پورتنيومحکموکې دفيصلې له موضوع څخه خارج اعتراضونه داوريدلو وړ نه دي ، بلکې نوې دعوی بلله کيږي . (۳)

**۲۲۶ ـ ماده :**

هغه احکام چې داصلي دعوی په ضمن کې په پيښو شوو دعووکې صادريږي پخوا داصلي دعوی له انفصال څخه دمرافعې اوتميز وړ نه دي . (۴)

**۲۲۷ ـ ماده :**

د تميز غوښتني موده دمرافعې دحکم دابلاغ له نيټې څخه حسابيږي . (۵)

**مادهٔ ۲۲۳ :**

تميز درحوزهٔ صلاحيت اصولی خود عموم احکام محاکم ابتدائيه ومرافعه را ملاحظه وتدقيق ميکند . (۱)

**مادهٔ ۲۲۴ :**

هرگاه در اثر ملاحظه وتدقيق تميز ظاهر ميگردد که حکم محاکم ابتدائيه ومرافعه يا يکی از آنها مطابق مقررات صورت گرفته است از طرف محکمهٔ تميز تائيد ميشود . (۲)

**مادهٔ ۲۲۵ :**

اعتراضات خارج موضوع فيصله درمحاکم فوقانی قابل سمع نمی باشد بلکه دعوی جديد پنداشته ميشود .(۳)

**مادهٔ ۲۲۶ :**

احکاميکه دردعاوی حادثه درضمن دعوی اصلی صادر ميگردد قبل از انفصال دعوی اصلی قابل مرافعه وتميز نيست . (۴)

**مادهٔ ۲۲۷ :**

مدت استدعای تميز از تاريخ ابلاغ حکم مرافعه محسوب ميشود . (۵)

(۱) : الْمَادَّةُ(۱۸۳۹) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

(۲) : الْمَادَّةُ(۱۸۳۹) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ . وشرحها دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩١) .

(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

(۴) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

(۵) : المادة (۱۸۳۹) دررالحكام جـ (۴) صـ (۶۹۱) .

**۲۲۸ ـ ماده :**
كه كوم يوطرف له تميز غوښتني ځخه پخوا فوت شي نوترهغه وخته پوري چې دمحكمې حكم د مړه ورثې يا د مړي د صغيرانو وصي ته ابلاغ شوى نه وي ، په دې حال كې چې د ورثه ؤ په منځ كې صغيران وي ددوى دتميز غوښتني حق محفوظ ساتل كيږي . (۱)

**۲۲۹ ـ ماده :**
كه دتميزغوښتنه له ميعاد ځخه خارجه وشوه نو دا غوښتنه د تميز له خوا مستردېږي . (۲)

**۲۳۰ ـ ماده :**
د يوه خصم دتميز دغوښتني په صورت كې بل خصم كولاى شي چې پخوا د تميز د فيصلې له صادريدلو ځخه تميز وغواړي . (۳)

**۲۳۱ ـ ماده :**
د تميز دمودې تيريدل ددعوى د دوران په ترځ كې ديوطرف خصم غوښتنه د مقابل جانب په تميزغوښتني تا ثير نلري . (٤)

**مادۀ ۲۲۸ :**
هرگاه يكی از طرفين قبل از استدعای تميز فوت نمود تا زمانيكه حكم محكمه بورثۀ متوفا يا وصی صغارمتوفی ابلاغ نشده باشد درحاليكه دربين ورثه صغار باشد حق تميز طلبی اوشان محفوظ ميماند . (۱)

**مادۀ ۲۲۹ :**
هرگاه استدعای تميز درخارج ميعاد صورت گرفت ، استدعای مذكور از طرف تميز مسترد ميگردد . (۲)

**مادۀ ۲۳۰ :**
درصورت تميز طلبی يكی ازخصمين خصم ديگر نيز ميتواند قبل از اصدار فيصلۀ تميز، تميز طلب شود . (۳)

**مادۀ ۲۳۱ :**
انقضای مدت تميزخواهش يكی از متخاصمين در اثنای دوران دعوی درحق تميزخواهی جانب مقابل تاثير ندارد . (۴)

(۱) : المادة (۱۸۳۹) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦۹۱) .
(۲) : المادة (۱۸۳۹) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦۹۱).
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .
(۴) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۰۱ ) مَجَلَّةُ الْأَحْكَامِ .

**۲۳۲ـ ماده :**

تمیزغوښتنه فقط داستدعا په وړاندي کیدو یا دهغې ځوابیې لائحې په وړاندي کیدو چې دمدعي د لائحې پځواب کې یې وړاندي کوي صورت نیسي . (۱)

**۲۳۳ ـ ماده :**

د تمیزغوښتنه دتمیز په ریاست کې د عرض حال دوړاندي کیدوپه وسیله سره کیږي . (۲)

**۲۳۴ ـ ماده :**

د تمیز غوښتني پخصوص کې دحال عرض د تمیز مرکزي لوړ ریاست ته هم کیدای شي (۳)

**۲۳۵ ـ ماده :**

دولایاتودتمیز غوښتني مرجع والیان او ولایتي کمیسیونو لوړ مشران دي . (٤)

**۲۳۶ ـ ماده :**

دتمیز غوښتني په عرض حال کې چې د تمیز ریاست ته وړاندي کیږي دلاندنیو مراتبو مراعات حتمي دی :-

**الف**: دتمیزغوښتني دعرض حال تصریح.

**ب**: ددواړوخواؤ نومونه اودهغومکمله شهرت.

**ج** : ــ د هغې محکمې ټاکل چې حکم او فیصله ورڅخه صادره شوې وي .

**مادهٔ ۲۳۲ :**

تمیز خواهی فقط به تقدیم استدعا یا به تقدیم لائحه جوابیه که بنا برجواب لائحه مدعی ، تقدیم مینماید صورت میگیرد . (۱)

**مادهٔ ـ ۲۳۳ :**

استدعای تمیز در ریاست تمیز بوسیلهٔ تقدیم عرض حال صورت میگیرد . (۲)

**مادهٔ ۲۳۴ :**

عرض حال مبنـی براسـتدعای تمیز بریاست عالی تمیز نیز شده میتواند . (۳)

**مادهٔ ۲۳۵ :**

مرجع تمیز طلبی ولایات، والی ولایت وسرپرست کمیسیون ولایتی میباشد . (۴)

**مادهٔ ۲۳۶ :**

در عرض حال تمیز خواهی که بریاست تمیز تقدیم میشود مراعات مراتب آتی حتمی است :

**الف**- تصریح عرض حال تمیزخواهی .

**ب**- اسمای طرفین وشهرت مکملهٔ شان .

**ج**- تعیین محکمهٔ که حکم وفیصله از آن صادر شده است .

(۱) : المادة (۱۸۳۹) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦۹۱) . ....

(۲) : المادة (۱۸۳۹) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦۹۱) .

(۳) :الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) مَجَلَّةُ. .....

(۴) : المادة (۱۸۳۹) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦۹۱).الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) مَجَلَّةُ الْأَحْکَامِ .

**د** : ــ دمحکمې د حکم دابلاغ نیټه او دتمیز غوښتني وجه . (۱)

**۲۳۷ـ ماده** :

دمــستدعي له خوا له اسـتدعا سره سم دلاندنیو مراتبو وړاندي کول حتمي دي :

**الف** :ــ دفیصلې صورت چې دمحکمې تصدیق ولري .

**ب** : ــ د مـستدعي دادعا لائــحه سره دهغه له اعتراضاتو او دلائلو . (۲)

**۲۳۸ـ ماده** :

د استدعا اواعتراضاتواودلائلوهره یوه لائحه دوه نقله وي . (۳)

**۲۳۹ ـ ماده** :

هغه استدعاچې د(**۲۳۷،۲۳۶،۲۳۳**) موادومراتب ونلري داکمال په غرض دتمیزد ریاست له خوا مستردیږي .(٤)

**۲۴۰ـ ماده** :

دتمیز په میعادکې تمیز غوښـتونکې کولای شي چې خپله استدعا دهغې له لازمو شرطو سـره سم تنظیم اوهغه نوي وړاندي کړي . (٥)

**د** :ــ تاریخ ابلاغ حکم محکمه ووجه تمیز طلبی . (۱)

**مادهٔ ۲۳۷** :

توام با استدعا تقدیم اوراق آتی از طرف مستدعی بریاست تمیز حتمی است :

**الف**-صورت فیصله که دارای تصدیق محکمه باشد .

**ب**- لائحه ادعای مستدعی بااعتراضات و دلائل آن. (۲)

**مادهٔ ۲۳۸**:

هر کدام از لائحه استدعا واعتراضات ودلائل دو نقله میباشد . (۳)

**مادهٔ ۲۳۹** :

استدعای کـه حـاوی مراتـب مـواد (**۲۳۳ـ۲۳۶ـ۲۳۷**)نباشد بغرض اکمـال ازطرف ریاست تمیزمستردمیگردد . (۴)

**مادهٔ ۲۴۰** :

در ظرف میعاد تمیز،تمیز طلب میتواند به تنظیم استدعای خود بر وفق شروط لازمهٔ آن پر داخته مجدداً آنرا تــقدیم دارد . (۵)

---

(**۱**) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(**۲**) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(**۳**) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(**۴**) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(**۵**) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام . شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦٩١) .

**۲۴۱ ـ ماده :**
دتمیزغوښتني دمودې له تیریدو وروسته د تمیز غوښتني حق ساقطیږي . (۱)

**۲۴۲ـ ماده :**
دتمیزغوښتنه دابتدائیې اومرافعې په فیصلو پوري متعلقو احکامو اجراء متوقف کوي . (۲)

**۲۴۳ ـ ماده :**
تمیز مکلف دی چې داعتراض پاڼه او د تمیز په استدعا پوري مربوطه ضمانت اسناددتمیز داستدعا د وړاندې کیدو له نیټې څخه وروسته په موده دیوې هفتې کې تصدیق کړي اومدعي علیه ته یې ابلاغ کړي . (۳)

**تبصره** : له پورتنی مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**۲۴۴ ـ ماده :**
محکوم علیه مکلف دی هغه اعتراضات ، افادات ، مدافعات اودلائل چې دتمیز غوښتني پراعتراضاتو یې په نظرکې لري دتنظیمي پاڼې په ترڅ کې داستدعا د تبلیغ له نیټې څخه وروسته په موده دیوې هفتې کې تمیزته وړاندې کړي (۴)

**مادۀ ۲۴۱ :**
بعد از انقضای میعاد تمیز طلبی حق تمیز خواهی ساقط میگردد . (۱)

**مادۀ ۲۴۲ :**
استدعای تمیز اجرای احکام متعلق به فیصلۀ ابتدائیه ومرافعه را متوقف میسازد . (۲)

**مادۀ ۲۴۳ :**
تمیز مکلف است ورق اعتراض و اسناد ضمانت مربوط باستدعای تمیز را درظرف یکهفته بعد از تاریخ تقدیم استدعای تمیز تصدیق نموده بمدعی علیه ابلاغ کند . (۳)

**تبصره**: حالات اضطراري ازحکم ماده فوق مستثنی است .

**مادۀ ۲۴۴ :**
محکوم علیه مکلف است اعتراضات افادات ، مدافعات ودلائلی را که بر اعتراضات مستدعی تمیز درنظر دارد ضمن ورق تنظیم وبعد از تاریخ تبلیغ استدعا در ظرف یکهفته به تمیز تقدیم دارد . (۴)

(**۱**) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام . المادة (۱۸۳۹) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦٩١) .
(**۲**) : المادة (۱۸۳۹) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦٩٢) .
(**۳**) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .
(**۴**) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحکام . شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦٩١) .

**تبصره** : له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنى دي .

**۲۴۵ ـ ماده** :

دتميزداستدعا مرجع په ولاياتوكې مكلف دي چې د تميزپه استدعاپورې مربوطه د ضمانت سند او د لائحې صورت وروسته له لازموتبليغاتو تصديق كړي وروسته دهغه له ځواب اخيستلو له مقابل طرف نه په موده ديوې هفتې كې دطرفينوپاڼې په مرتب صورت دمكتوب په ملتيا په لومړۍ پوسته كې تميز ته وليږي . (۱)

**تبصره** : له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنى دي .

**۲۴۶ ـ ماده** :

د تميز غوښتونكود (۲۴۴) مادې په ترتيب له تميز غوښتني څخه داستيناف د مقرراتو په اكمال مكلف دي . (۲)

**۲۴۷ ـ ماده** :

هغه مراجع چې د(۲۴۵) مادې دمراتبو درعايت نه كولو په علت د تميزداستدعا دليږلو دتاخير سبب او دخصمينو ديوه جانب د ضرر موجب وګرځي مسئولي دي . (۳)

**تبصره**: حالات اضطراري ازحكم ماده فوق مستثنى است .

**مادۀ ۲۴۵** :

مرجع استدعاى تميز در ولايات مكلف اند صورت لائحه و سند ضمانت مربوط باستدعاى تميز را بعد از تبليغات لازمه تصديق نموده ، پس از اخذ جواب آن از طرف مقابل در ظرف يكهفته اوراق طرفين را مرتبًا ضم مكتوب توسط پسته به تميز ارسال نمايد . (۱)

**تبصره**: حالات اضطراري ازحكم ماده فوق مستثنى است .

**مادۀ ۲۴۶** :

مستدعى تميز به ترتيب مادۀ (۲۴۴) باكمال مقررات استيناف از تميز طلبى مكلف ميباشد . (۲)

**مادۀ ۲۴۷** :

مراجعيكه بعلت عدم رعايت مراتب مادۀ (۲۴۵) سبب تاخير ارسال استدعاى تميز وموجب ضرر احد خصمين گرديده باشد مسؤل آن اند . (۳)

***

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام . شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩١) .

(۲) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

(۳) : المادة (۱۹) مجلة الاحكام .

**۲۴۸ـ ماده :**

د تميزمحکمه فقط د ټيټو محکموفيصلې ګوري اوتدقيقوي ئې دضرورت په وخت کې دطرفينوجلب اواحضار ته هم اقدام کولای شي . (۱)

**۲۴۹ ـ ماده :**

د ټيټو محکمو دحکم دماتولو موجبه اسباب په څلور ډوله دي :

**الف** : ـ دموضوع انفصال په داسي محکمه کې شوی وي چې محکمه دهغې د انفصال حق ونه لري . (۲)

**ب** : ـ د محکمې حکم له مقرراتو څخه خلاف وي . (۳)

**ج** : ددعوی جريانات دمحکمود اصولو او د لازمو شرائطو پخلاف عملي شوی وي . (٤)

**د** : ـ په يوه موضوع کې صادرشوي فيصلې چې يوه له بلې څخه مخالفه وي . (۵)

**۲۵۰ ـ ماده :**

که دعوی داسي محکمې ته وړاندي شوه چې اساسا دهغې انفصال دهغې محکمې وظيفه نه وه ماتيږي . (٦)

**مادۀ ۲۴۸ :**

محکمۀ تميز، فقط فيصله های محاکم تحتانی را تدقيق وملاحظه ميکند وبجلب واحضار طرفين نيز عنداللزوم اقدام ميتواند . (۱)

**مادۀ ۲۴۹ :**

اسباب موجبۀ نقض احکام محاکم تحتانی بر چهار قسم است :

**الف**- انفصال موضوع درمحکمه ای صورت گرفته باشد که محکمه حق انفصال آنرا نداشته باشد . (۲)

**ب**- حکم محکمه خلاف مقررات باشد . (۳)

**ج**- جريانات دعوی برخلاف اصول محاکمات وشرايط لازمه عملی گرديده باشد . (۴)

**د**- فيصله جات صادره در موضوع واحدکه ازهمديگرمخالف باشد . (۵)

**مادۀ ۲۵۰ :**

هرگاه دعوی در محکمه ای رويت گرديد که اساسًا انفصال آن ازوظائف همان محکمه نبود نقض ميشود . (۶)

(۱) : الْمَادَّةُ (۱۸۳۹) و (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .
(۲) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .
(۳) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ) مجلة الاحكام .
(۴) :الْبَابُ الْأَوَّلُ دررالحكام جـ (٤) صـ (۱۷۹) .
(۵): الْمَادَّةُ (۱۸۳۸) مجلة ودررالحكام جـ (٤) صـ (۱۷۹)
(٦) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .

**۲۵۱ ـ ماده :**
دهغو فیصلو نواقص چې تمیز ته رسیږي دماتېدو وړ مواردوکې یواځې دمعترض په اعتراض پوري توقف نه لري ، د تمیز له خوا هم داعتراض دنه وجود په صورت کې اصولاً کیدای شي . (۱)

**۲۵۲ ـ ماده :**
دفیصلې مخالفت له هغومقرراتوڅخه اعتبارلري چې دفیصلې دصدورپه وخت کې مرعی الاجراء وي . (۲)

**۲۵۳ ـ ماده :**
هغه متضاد احکام چې له دوومحکمو څخه په یوه موضوع کې صادرشوي وي اوهیڅ یوددوی دتاییدوړ نه وي ماتیږي . (۳)

**۲۵۴ ـ ماده :**
په هغودعووکې چې له مقاولوڅخه پیدا شوې وي که دسند مفاد مخالف تفسیر شوی وي دهغو په متعلق حکم ماتیږي(۴)

**۲۵۵ـ ماده :**
هغه دعوی چې په محکموکې دمحاکمې له اصولوڅخه مخالفې فیصلې شوې وي =

**مادۀ ۲۵۱ :**
نواقص فیصله هائیکه به تمیز میرسد در موارد قابل نقض تنها باعتراض معترض توقف نداشته از طرف تمیز در صورت عدم اعتراض نیز اصولاً صورت گرفته میتواند . (۱)

**مادۀ ۲۵۲ :**
مخالفت فیصله از مقرراتی اعتبار دارد که در وقت صدور فیصله مرعی الاجراء باشد . (۲)

**مادۀ ۲۵۳ :**
احکام متضادیکه از دو محکمه در یک موضوع صادر شده وهیچ کدام قابل تائید نباشد نقض میگردد . (۳)

**مادۀ ۲۵۴ :**
در دعاوی که از مقاولات نشئت کرده باشد هرگاه مفاد سند مخالف تفسیر شده باشد حکم متعلق به آن نقض میشود (۴)

**مادۀ ۲۵۵ :**
دعاوی که در محاکم مخالف اصول محاکمه فیصله شده باشد =

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام .شرح المادة (۱۸۳۸) الاتاسي جـ (٦) صـ (١٦٥) . شرح الْمَادَّةُ (۱۸۳۹ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩٠) .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۰ ) و (۱۸۳۹) مجلة الاحكام . الْمَادَّةُ ( ١٦١٨ ) مجلة الاحكام .دررالحكام ج (٤) صـ (١٨١) .
(۳) : الْمَادَّةُ (۱۸۳۹) مجلة الاحكام . وشرحها دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩١) .
(۴) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام . الْمَادَّةُ (۱۸۳۹) مجلة الاحكام . وشرحها دررالحكام .شرح مجلة الاحكام للاتاسي , جزء (٦) ص (٩٣) .شرح الْمَادَّةُ ( ١٨١٦ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٢٦) .

= دهغو ماتيدل دتميزپه محكمه كې له لاندنيو اسبابو څخه په يوه سره كېداى شي :

**الف** : دعدلي محكمو داصولو مراعات نه كول .

**ب** : ـ د اصول په رعايت كې تقصير او خطا په دې درجه چې دحكم د تغير سبب ګرځېدلی وي .

**جـ** : دمدعي يا مدعي عليه د اعتراض وجود دمحاكمې په اصول كې دتغير او خلل له اسبابو سره په داسي حال كې چې ددې اعتراض په خصوص كې دمحكمې له خوا تدقيق نه وي شوى . (١)

**٢٥٦ـ ماده** :

د ابتدائي او مرافعې محكمو احكام چې له مقرراتو څخه مخالفت ولري كه څه هم په دې ډول مورد كې د معترض اعتراض كافي نه وي ماتيږي . (٢)

**٢٥٧ ـ ماده** :

هغه فيصلې چې دداسي محكمو له خوا فيصله شوې وي چې دانفصال صلاحيت يې نه لري دتميز له خوا ماتيږي مربوطه محكمې ته بيرته ليږلی كيږي . (٣)

=نقض آنها درمحكمۀ تميز يكی از اسباب آتی صورت گرفته ميتواند :

**الف**- عدم مراعات اصول محاكم عدلی .

**ب**- تقصير وخطا در رعايت اصول به درجه ئی كه سبب تغيير حكم گرديده باشد .

**ج**- وجود اعتراض مدعی يا مدعی عليه به اسباب تغير وخلل در اصول محاكمه درحاليكه درمورد اعتراض مذكور از طرف محكمه تدقيق نشده باشد . (١)

**مادۀ ٢٥٦** :

احكام محاكم ابتدائيه ومرافعه كه از مقررات مخالفت داشته باشند اگرچه درچنان مورد اعتراض معترض كافی هم نباشد نقض ميشود . (٢)

**مادۀ ٢٥٧** :

فيصله هائيكه از طرف محاكم فيصله شده باشد كه فاقد صلاحيت انفصال آن باشد ازطرف تميز نقض گرديده بمحكمۀ مربوطه ارجاع ميشود . (٣)

---

(١) : المادة (١٨٠١) مجلة الاحكام . الْمَادَّةُ (١٨٣٩) مجلة الاحكام . ودررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩١) .

(٢) : المادة (١٨٠١) مجلة الاحكام .شرح الْمَادَّةُ (١٨٣٨) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩٠) . والاتاسي جـ (٦) صـ (١٦٥) .

(٣) : المادة (١٨٠١) مجلة الاحكام . الْمَادَّةُ (١٨٣٩) مجلة الاحكام .

**۲۵۸ ـ ماده :**
هغې محکمې ته چې رجوع ورته شوي ده دنوي استدعا وړاندي کولو ته ضرورت نشته بلکي همغه وړاندي شوي استدعا تمیز ته کافي ده . (۱)

**۲۵۹ ـ ماده :**
که فیصله په تمیزکې دکوم علت د وجود له مخې ماته شي او بلي محکمې ته دتدقیق دپاره ولیږله شي په دې صورت کې ددوهمې محکمې حکم د لومړۍ محکمې دحکم په اسبابو باندي بنا شوی وي او مدعي یا مدعي علیه د هغې د بیا ماتولو خواهش وکړي بیا تدقیقات یې د تمیز دعمومي هیئت په حضورکې اجراء کیږي . (۲)

*****
***
*

**مادۀ ۲۵۸ :**
در محکمه مرجوع الیها به تقدیم استدعای جدید ضرورت ندارد بلکه همان استدعای تقدیم شده به تمیز کافی است . (۱)

**مادۀ ۲۵۹ :**
هرگاه فیصله درتمیز بنا بر وجود عللی نقض گردید وبمحکمۀ دیگر جهت تدقیق ارجاع شده درصورتیکه حکم محکمۀ ثانی به اسباب حکم محکمۀ اول بناگردیده باشد ومدعی یا مدعی علیه نقض دوبارۀ آنرا خواهش نمود تدقیقات ثانوی بحضور هیئت عمومی تمیز اجراء میشود . (۲)

*****
***
*

(۱) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) دررالحکام .
(۲) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) دررالحکام .شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ) دررالحکام جــ (٤) صــ (٦٩٠) .

## د حکم له ماتولو وروسته د تمیز وظیفه

**۲۶۰ ـ ماده :**
تمیز داصلي دعوی په فیصله چې حکم یې ماتوي رسیده ګي نه کوي بلکې دهغې دوران هغې محکمې ته چې د مقرراتو له مخې وټاکله شي محولوي . (۱)

**۲۶۱ ـ ماده :**
تمیز مکلف دی چې دټیټو محکمو (د ابتدائې اومرافعې ) هر ډول فیصلې په دقت سره وګوري که چیري د لزوم له مخې ماتي شي نوفیصله اوقضیې په ارجاع حکم کوي تر څو وروسته له رسیدګي نوی حکم صادر کړي . (۲)

**۲۶۲ ـ ماده :**
د بلي محکمې له خوا د مات شوي حکم د تصحیح یا دبیا رسیدګي دپاره نوې دعوی اوعریضې ته حاجت نشته بلکي یو اځي دتمیز دحکم ښکاره کول به کفایت وکړي . (۳)

## وظیفهٔ تمیز بعد از نقض حکم

**مادهٔ ۲۶۰ :**
تمیز به فیصلهٔ اصل دعوی که حکم آن را نقض میکند رسیدگی نه نموده بلکه دوران آن را بمحکمهٔ که حسب مقررات تعین شود محول میسازد . (۱)

**مادهٔ ۲۶۱ :**
تمیز مکلف است که هر نوع فیصلهٔ محاکم تحتانی ( ابتدائیه، مرافعه) را به دقت ملاحظه کرده هرگاه در صورت لزوم نقض شود فیصله وبه ارجاع قضیه حکم مینماید تا بعد از رسیدگی حکم مجدداً صادر گردد . (۲)

**مادهٔ ۲۶۲ :**
برای تصحیح حکم منقوض یا تجدید رسیدگی از طرف محکمهٔ دیگر بدعوی ، عریضهٔ جدید لزومی ندارد بلکه تنها ارائه حکم تمیز ، کفایت خواهد کرد . (۳)

(۱) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام . شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ) دررالحكام , ج (٤) ص (٦٩٠) .
(۲) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام . شرح الْمَادَّةُ (۱۸۳۹) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩٠ ـــ ٦٩٣) .
(۳) : المادة (۱۸۰۱) مجلة الاحكام . الْمَادَّةُ (۱۸۳۹) مجلة الاحكام .

**۲۶۳ ـ ماده :**

که حکم د محکمې د نه صــلاحیت په واسطه مات شوی نه وي بلکي د نورو موجباتو او نــواقصو له مخې د ماتـېدو وړ وليدل شي دتمیز ریاست کولای شي چې هغې مرافعې محکمې ته چې حکم یې کړی دی دعوی محول کړي او د سر له سره درسیدګي امر ورکړي که مرافعې محکمې دپخوا غوندي بیا فیصله ناقصه صادره کړه نو د هغــې مما ثلي محکمې ته لېږله کیږي او که بیا هم فیصله ناقصه ولیدله شــوه نو هلته به د تمیز ریاست په هغې موضوع کې دقضاوت حق ولري . (۱)

**۲۶۴ ـ ماده :**

که تــمیز ته د مرافعــې دا ډول حکم چې دمرافعې د مودې د تېرېدو له حیثه یې د (اســتیناف) پـرغوښــتنه کـړی وي راشي څرنګه چې دې محکمې د حکم علتونه اودهغه اسباب په نظرکې نه دي نیولي نو دا حکــم که ماتــیږي نو بـیرته هغې مرافعې ته اعــاده او سر له سره به دوران ومومي .(۲)

**مادۀ ۲۶۳ :**

اگــر حکم بواسطۀ عدم صــلاحیت محکمه نقض نــشده باشد بلکه بنا بر دیگر موجبات ونواقص، قابل نــقض دیــده شــود ریاست تـمیز مـــیتواند بمحکمۀ مرافعه که حکم نموده دعوی را محول نموده ورسیدگی مجدد را امر دهند ، واگر محکمۀ مرافعه کما فی الســابق فیصله را نــاقص صادر نمود بمحکمۀ مماثل آن ارجاع میشود واگر باز هم فیصله ناقص دیده شد ریاست تــمیز درآن موضوع حــق قضاوت را خواهــد داشــت . (۱)

**مادۀ ۲۶۴ :**

تــمیز اگر چــنان حکم مرافعه را که بر اســتدعای ( اســتیناف) از حــیث انقضای میعاد مرافعه کرده باشد چون محکمۀ متذکره علل حکم واسباب آن را در نــظر نگــرفته حکم مــذکور اگر منقوض میشود واپس بمرافعه مذکور اعاده و سر از نو دوران خواهد یافت . (۲)

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحکام جــ (٤) صـــ (٦٩٣) . شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۸ ) دررالحکام جــ (٤) صـــ (٦٩٠) . الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) دررالحکام .

(۲) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحکام جــ (٤) صـــ (٦٩٣) .

**۲۶۵ ـ ماده :**

د مثال په ډول که د مرافعې خطا په شهودو کې وي ، او د دعوی د جريان اساس مشروع او اصولي صورت نيولی وي نو که ماتېږي او بيا بيرته همغې محکمې ته لېږله کيږي نو دا محکمه د دعوی اساس سـر له سره نه غواړي بلکي د فيصلې نقصاني ځايونه به چې دشهودو په مورد کې يا وروسـته له شهودو ئي کړی وي اصلاح کړي . (۱)

**۲۶۶ ـ ماده :**

همدا ډول که فيصله د سري تزکيې د نه وجوداو دهغه په شان دتميزله مخي ماتيږي او په هغه سبب ارجاع مومي نـو سـر له سره ددعوی اعادې اوشهودوته ضرورت نـشته بلکي يوائې دنواقصو اصلاح به په نظر کې ونيسي . (۲)

**۲۶۷ ـ ماده :**

د تميز تـدقيقات د قضيــې د راتګ له نېټې څخه په موده ديوې مياشتي کې اکمالـېږي او دتـميز قرار په دې موده کې صادريږي . (۳)

**تبصره :** له پورتنۍ مادې څخه اضطراري حالات مستثنی دي .

**مادهٔ ۲۶۵ :**

اگر خطای مرافعه مثلا درشهود بوده واساس جريان دعوی صورت مشروع واصولی بخود گرفته اگر نقض ميشود بهمان محکمه ارجاع می يابد ، محکمهٔ متذکره اساس دعوی را سر از نو نـمی خواهد بلکه مواضع نقصان های فيصله را که در مورد شــهود يا بعد از شــهود نموده اصلاح خواهد نمود . (۱)

**مادهٔ ۲۶۶ :**

هکذا اگر فيصلهٔ از حيث عدم تزکيه سـرِی ومانند آن از طرف تـميز نـقض ميگردد وبه آن سـبب ارجاع می يابـد اعادهٔ دعوی وشهود سر از نو ضرورت نداردبلکه تنها اصلاح نواقص را درنظر خواهد گرفت . (۲)

**مادهٔ ۲۶۷ :**

تـدقيقات تـميز در ظرف يکـماه از تاريخ ورود قضيه اکـمال وقرار تــميز درظرف مدت مذکور اصدار می يابد . (۳)

**تبصره:** حالات اضطراري ازحکم ماده فوق مستثنی است .

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحکام , ج (٤) ص (٦٩٣) .
(۲) : الْمَادَّةُ ( ۱۷۱۸ ) مجلة الاحکام .شرح الْمَادَّةُ (۱۸۳۹) دررالحکام . جــ (٤) صــ (٦٩٣) .
(۳) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) دررالحکام .

**۲۶۸ـ ماده :**

تميز كولاى شي چې د اړتيا په صورت کې د دوسيې اصل پاڼې چې طرفينو ابتدائيې يا مرافعې محكمې ته وړاندي كړې دي دكره كتني لپاره وغواړي . (١)

**۲۶۹ـ ماده :**

د تميز په تصويبونوکې دلاندي مراتبو مراعات حتمي دى :

**الف** : ددواړو خواؤ نوم ،شهرت ،كسب او داستوګني ځاى .

**ب** :ـ د ټيټو محكمو دفيصلې حكم . (٢)

**جـ** :ـ د دواړو خواؤ وړانـدي كـړيو اعتراضونو او دلائلو لنډول . (٣)

**د** :ـ د ماتېدو يا تا ئـيد اسـباب . (۴)

**۲۷۰ـ ماده :**

هغه فيصله چې دقانوني مخالفت له مخي ماته شوه داصلـي محاكمـې په اعـاده او دهغـې په جرياناتوکې تاثـير نه لري قانونا به اصلاح شي . (۵)

**۲۷۱ـ ماده :**

هغه فيـصله چـې له تميز څخه ماتيږي كه اعاده كيږي نو هغه محكمه چې هغې ته اعاده شوې ده دتميز حكم به سره =

(**١**) : الْمَادَّةُ (١٨٠١) دررالحكام .

(**٢**) : الفتاوى الهندية جـ (٣) صـ (٣٢٤) .

(**٣**) :شرح الْمَادَّةُ (١٨١٦) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٢٦)

**مادۀ ۲۶۸** :

تـميز ميتواند در صورت لـزوم اصل اوراق را كه طرفـين بمحكمۀ ابتدائيه يا مرافعـه داده اسـت بغرض ملاحـظه بخواهد . (١)

**مادۀ ۲۶۹**:

در تصاويب تميز مراعات مراتب آتی حتمی است :

**الف**- اسـم، شهرت ، صنعت ومحل اقامت طرفين .

**ب**- حكم فيصلۀ محاكم تحتانی . (٢)

**ج**- خلاصۀ اعتراضات ودلائل تقديم داشتۀ طرفين . (٣)

**د**- اسباب نقض ، تائيد . (۴)

**مادۀ ۲۷۰**:

فـيصلۀ كه بنا بر مخالـفت قانـونـی نقض شده باشد دراعادۀ اصل محاكمه وجريانات آن تاثير ندارد قانوناً اصلاح خواهد شد . (۵)

**مادۀ ۲۷۱** :

فيصلۀ كه از تميز نقض ميگردد اگر اعاده ميشود محكمه كه به آن اعاده شده =

(**۴**) :شرح الْمَادَّةُ (١٨٣٩) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩١)
.شرح الْمَادَّةُ ( ١٨٢١ ) دررالحكام . جـ (٤) صـ (٦٥٢) .

(**۵**) :شرح الْمَادَّةُ (١٨٣٩) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦٩٣).

= دهغه له الفـاظو اوكلمـاتو په دوهمه فـيصله كې دا خل كړي اوكه محكمې له هغونه صرف نظر وكړ ، نو تميز هغه بيا هم ماتولای شي . (۱)

**۲۷۲ ـ ماده :**

دمثال په ډول كه يو شخص په دوو تنو باندي دعوی وكړه اوپه هغوباندي حكم شوی ؤ نو په دې صورت كې چې يوه تن ئې تميز غوښتی وي دوهم شخص دفيصلې دماتېدو په صورت له هغه څخه استفاده نشي كولی . (۲)

**۲۷۳ ـ ماده :**

كه پراصيل ياكفيل باندي دپوردوركړي حكم شوی ؤ اصيل تميز وغوښت د حكم د ماتېدو په صورت كې دوی دواړه به له هغه څخه استفاده وكړي . (۳)

**۲۷۴ ـ ماده :**

كه محكمې دڅو تنو د مشتركي ځمكي يا نورو په ويـشلو باندي حكم كړی ؤ او په تميز كې د يوه تن په غوښـتنه دا حكم ما تېږي نورشريكان له هغه استفاده كولای شي . (۴)

= حكم تميز را با الفاظ وكلمات آن داخل فيصلهٔ دوم خواهد نمود واگر محكمه آن را صرف نظر نمود تميز آن را نـقض دوم كرده ميتواند . (۱)

**مادهٔ ۲۷۲ :**

هرگاه شخصی بدونفرمثلا دعوی نمود وبر عليه شان حكم شده بود بصورتيكه يكنفر آن تميز خواسته باشد شخص دوم بصورت نقض فيصله از آن استفاده كرده نميتواند . (۲)

**مادهٔ ۲۷۳ :**

اگر بر اصل وكفيل حكم تاديهٔ دين شده بود ، اصل ، تميز طلب گرديد بصورت نقض حكم هر دوی شان از آن استفاده خواهند نمود . (۳)

**مادهٔ ۲۷۴ :**

اگر محكمه به تقسيم اراضی وغيره ، مشترک چـند نفر حكم نموده بود ودر تمـيز به استدعای يكنفر حكم مذكور نقض ميشود شركای ديگر از آن استفاده كرده ميتوانند . (۴)

(۱) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۹ ) دررالحكام جـ (٤) صـ (٦۹۳) .الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) دررالحكام .

(۲) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) دررالحكام .

(۳) : الْمَادَّةُ (٦٦۲ ) مجلة الاحكام .

(۴) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) دررالحكام .

**۲۷۵ ـ ماده :**

تميز نشي کولای بې د جانبينو له موافقې ځخه مات شوې موضوع غير له هغې محکمې چې حکم ئې صادر کړی دی بلې محکمې ته حواله کړي .(۱)

**۲۷۶ ـ ماده :**

مات شوی حکم بايد د خصمينو په مخ کې تصحيح شي اوکنه بيا به د تميز په حضورکې مات شي . (۲)

**۲۷۷ ـ ماده :**

په هغه حکم کې چې له تميز ځخه صادرېږي بايد د طرفينو نوم، شهرت، کسب او د استوګنې ځای او هغه حکم چې تميز ته رجوع شوی دی ـ سره د طرفينو د اعتراضونو او د ليلونو لنډون او د حکم هغه اسباب چې د تميز له خوا د هغه د ماتېدو يا تائيد موجب کيږي سره له مذهبي جزئياتو او اصولي موادو ذکر شي . (۳)

**۲۷۸ ـ ماده :**

له هغو تصويبونو ځخه چې تميز ئې صادروي بايد متداعين خبر کړي . (۴)

**مادهٔ ۲۷۵ :**

تميز نميتواند بدون موافقه طرفين موضوع نقض شده را غير از محکمهٔ که حکم صادر نموده بمحکمهٔ ديگری حواله کرده باشد . (۱)

**مادهٔ ۲۷۶ :**

حکم منقوض بايد بمواجه خصمين تصحيح گردد و الا دوباره بحضور تميز نقض خواهد شد . (۲)

**مادهٔ ۲۷۷ :**

حکمی که از تميز صادر ميشود بايد اسم و شهرت و شغل و محل اقامت طرفين وحکمی که به تميز رجوع شده است باخلاصهٔ اعتراضات و ادلهٔ طرفين و اسبابيکه ازطرف تميز موجب نقض يا تائيد آن حکم ميشود باجزئيات مذهبی و مواد اصولی ذکر گردد . (۳)

**مادهٔ ۲۷۸ :**

از تصاويبی که تميز صادر ميکند بايد متداعين را اگاه سازد . (۴)

(۱) : الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) دررالحکام .

(۲) : شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۳۰ ) دررالحکام حـ (۴) (٦٦٧) .

(۳) : شرح المادة (۱۸۳۹) دررالحکام جـ (٤) صـ (٦٩١) .شرح الْمَادَّةُ ( ۱۸۲۱ ) دررالحکام . جـ (٤) صـ (٦٥٢) . الْمَادَّةُ (۱۸۰۱) مجلة الاحکام .

(۴) : الْمَادَّةُ (۱۸۲۷) مجلة الاحکام .